# د کورنو داصلاح لپاره څلویښت نصیحتونه

تالیف : الشیخ صالح المنجد

پښتو ترجمه : عامر حسن

إن الحمد لله، نحمده، ونستعينه، ونستغفره، ونعوذ بالله من شرور أنفسنا، ومن سيئات أعمالنا، من يهده الله فلا مضل له، ومن يضلل فلا هادي له، وأشهد أن لا إله إلا الله وحده لا شريك له، وأشهد أن محمدا عبده ورسوله... أما بعد:

## (كور يو نعمت دى)

الله تعالى فرمايي:{وَاللَّهُ جَعَلَ لَكُمْ مِنْ بُيُوتِكُمْ سَكَنًا} [النحل: 80]

ترجمه :{ الله تعالى ستاسو لپاره ستاسو كورونه داوسيدو او سكونت ځايونه ګرځولي دي}

ابن كثير رحمه الله ددي ايت په تفسير كي ليكي«**يذكر تبارك وتعالى تمام نعمه على عبيده، بما جعل لهم من البيوت التي هي سكن لهم يأوون إليها، ويستترون، وينتفعون بها سائر وجوه الانتفاع**»(1)

ترجمه: الله تعالى پدي ايت كريمه كي په بنده باندي د خپلو پوره نعمتونو تذكره كوي او د هغي نعمتونو څخه يو دا نعمت دى چي الله ددوى لپاره كورونه ګرځولي دي په هغي كي دوى اوسيږي او پټيږي او د هغي نه هر قسم فايد ي حاصلوي

كور زمونږ د يو كس لپاره څه فريضه ادا كوي آيا دا كور دده د خوراک ځاي ندى ؟ ايا دا دده د نكاح د خوب او راحت ځاي ندى؟ايا دا دده لپاره دخلوت او دخپل اهل او اولاد سره د اجتماع ځاي ندى؟

---

(1)تفسير القران العظيم (4، 507)

**ايا دا د ښځی د حفاظت او ستر ځاي ندی ؟**

**الله تعالی فرمايي: {وَقَرْنَ فِي بُيُوتِكُنَّ وَلَا تَبَرَّجْنَ تَبَرُّجَ الْجَاهِلِيَّةِ الْأُولَى}** الاحزاب 33

**{ای ښځو په خپلو کورونو کي کينئ او د جاهليت ډول مه ښکاره کوئ}**

**او کله چی ته د هغه خلکو په حال کي فکر وکړي چي د هغوئ کورونه نشته او په صحرا او د سړکونو په سرونو باندي اوسيږي هغه خلک چي متاثرين دي او په خيمو کي اوسيږي نو ته به د کور نعمت وپيژنی**

**او کله چی ته د يو پريشانه متاثر نه واوري چي وايي زما لپاره د قرارئ ځاي نشته زما د اوسيدو ځاي نشته کله ديو په کور کي اوده کيږم او کله د بل کله په هو ټل کی شپه تيروم او کله په باغ کي يا د سمندر په غاړه زما د جامو د ايخودو ځآي زما ګاړی دی نو کله چي ته دا هر څه واوري تاته به د کور د نعمت او د کور نه د محروموالي قباحت معلوم شي**

**او کله چي الله د بنو نضيرو نه انتقام واغسته نو دا نعمت يي تري واغسته الله فرمايي{هُوَ الَّذِي أَخْرَجَ الَّذِينَ كَفَرُوا مِنْ أَهْلِ الْكِتَابِ مِن دِيَارِهِمْ لِأَوَّلِ الْحَشْرِ مَا ظَنَنتُمْ أَن يَخْرُجُوا وَظَنُّوا أَنَّهُم مَّانِعَتُهُمْ حُصُونُهُم مِّنَ اللَّهِ فَأَتَاهُمُ اللَّهُ مِنْ حَيْثُ لَمْ يَحْتَسِبُوا وَقَذَفَ فِي قُلُوبِهِمُ الرُّعْبَ يُخْرِبُونَ بُيُوتَهُم بِأَيْدِيهِمْ وَأَيْدِي الْمُؤْمِنِينَ فَاعْتَبِرُوا يَاأُولِي الْأَبْصَارِ}** الحشر 2

**(( الله هغه ذات دي چي هغه کسان يي د خپلو کورنو څخه ويستلي چي اهل کتاب وو بيا فرمايي دوی خپل کورنه په خپلو لاسونو او دمسلمانانو په لاسونو ورانول نو پس تاسو عبرت واخلئ ای د عقل خاوندانو))**

**او هغه شيان چی يو مسلمان لره باعث ګرځي پدي باندي چي د خپل کور اصلاح وکړي هغه يو څو شيان دي**

**چي په لاندي ډول بيانيږي**

١_خپل ځان او کور والا د جهنم نه بچ کول او د سخت عذاب نه ځان بچ کول

الله تعالی فرمايي{يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا قُوا أَنْفُسَكُمْ وَأَهْلِيكُمْ نَارًا وَقُودُهَا النَّاسُ وَالْحِجَارَةُ عَلَيْهَا مَلَائِكَةٌ غِلَاظٌ شِدَادٌ لَا يَعْصُونَ اللَّهَ مَا أَمَرَهُمْ وَيَفْعَلُونَ مَا يُؤْمَرُونَ } التحريم(6)

{ای مومنانو خپل ځانونه او خپل اهل د هغه اور نه بچ کړئ چي د هغي خشاک انسانان او کاڼي د ي او په هغي باندي داسي سختي پرشتي ولاړي د ي چي د الله تعالی د هيڅ حکم نافرماني نه کوي}

٢_د کور په مالک باندي چي کوم مسؤوليت دي د هغي غټ ګڼړل او د هغي په ورځ د قيامت دالله مخی ته جواب ورکول ضروري ګڼړل

د انس رضی الله عنه نه روايت دی«إِنَّ اللَّهَ سَائِلٌ كُلَّ رَاعٍ عَنْ مَا اسْتَرْعَاهُ حَفِظَ ذَلِكَ أَمْ ضَيَّعَ؟ حَتَّى يَسْأَلَ الرَّجُلَ عَنْ أَهْلِ بَيْتِهِ»(1)

[چي الله تعالی به د هر مسؤول نه تپوس کوي چي کو م ته يو مسؤوليت ورکړی وي چي ايا هغه دا مسووليت په ښه ډول ادا کړی دی که ضايع کړی يي دی تردي چي د کور د مالک نه به د هغه د اهل باره کي تپوس کولی شي]

٣ ځکه چی کور د نفس دحفاظت ځای دی او نفس د شرونو څخه بچ کوی او نفس ددی نه منع کوی چي نورو خلکو ته شر ورسوی

او کور د فتنو په وخت کي د اوسيدو حقيقي ځاي دی

نبي ﷺ فرمايي

«طُوبَى لِمَنْ مَلَكَ لِسَانَهُ، وَوَسِعَهُ بَيْتُهُ، وَبَكَى عَلَى خَطِيئَتِهِ»(2)

[ د هغه چا لپاره خوشخبری ده چي د خپلي ژبي حفاظت وکړي او په خپل کور کی کيني او په خپله ګناه باندي وژاړي]

---

(1) رواه النسائي في السنن الكبرى (9219)، وحسنه الألباني في صحيح الجامع

(2) رواه الطبراني في المعجم الأوسط (0432)

معاذ بن جبل رضي الله عنه فرمايي" **خمس من فعل واحد منهن كان على الله . من عاد مريضا . أو خرج غازيا . أو دخل على إمامه يريد تعزيره وتوقيره . أو قعد في بيته فسلم الناس منه وسلم من الناس " . (1)**

[نبی علیه السلام مونږ سره د ۵ شیانو وعده کړي ده چا چي پدي کي يو هم وکه نو هغه به دالله په ذمه کي وي ۱ چا چي د مريض عيادت وکه ۲ يا جنازي سره لاړ ۳ يا د الله په لار کي د جهاد لپاره ووته يا ديو امام خواته لاړی دي لپاره چي احترام ورله وکړی يا په خپل کور کي کيناسته خلک دده د شره نه په ارام دي او دا د خلکو د شر نه]

او نبي عليه السلام يو بل ارشاد دی" **سلامة الرجل من الفتنة أن يلزم بيته " (2) .**

[ د يو سړي دپاره دفتني نه د بچ کيدو علاج دادی چي خپل کورکي کيني]

**ليكن ددی فايده انسان ته هله معلوميږی چی د غربت په حالت کی وی او د منكراتو تبديل يی په طاقت کی نه وی نو بيا به کور د هغه لپاره د حفاظت ځای وی چی خپل ځان به پکی د محرم کارونو او محرم نظر نه ساتی او خپل اهل به د ډول ښکاره کولو نه او خپل اولاد د بدو ملګرو نه پکی ساتی**

**۴ دا چی اکثره خلک خپل غالب وختونه په کورونو کی تيروی خاص طور په سخته ګرمی يخنی يا بارانونو کی يا د دورځی اولنی يا اخرنی وخت او کله چی د کار يا سبق نه فارغ شی نو هم کور کی وخت تيروی نو ددوی لپاره پدی وختونو کی ضروری ده چی دا اوقات په طاعت دالله کی تير کړی که نه وی نو په حرامو کی به ترينه ضايع شی**

**5 او دا ددی ټولو نه اهمه ده چی د کور اهتمام کول د يو مسلمان مجتمع لپاره غټه وسيله ده ځکه چی معاشره د کورونو نه جوړيږی او دا کورونه د معاشری ښښتی دی نو که د ا ښښتی يعنی کورنه صالحه وو نو معاشره به د الله تعالی د احکامو تابعداره وی ددشمن په مقابله کی به مضبوطه وی خير به پکی خوريګی او شر به ورته نه راځی**

---

(1) رواه أحمد (97012)،(2) رواه الديلمي الجامع الصغير( 2695)

**نو بیا به ددی کورونو نه معاشری ته دا عیان طالب علمان مجاهدین نیکی ښځی او تربیت کونکی مورګانی او نور مصلحین ووځي**

**نو کله چی ددی اهمیت ډیر دی او حال دا چی زمونږ کورونه د منکراتو نه ډک دی تقصیر او افراط تفریط پکی موجود دی نو دلته یو سوال ذهن ته راځی**

**هغه دا چی هغه کوم وسایل دی چی هغی سره مونږ د کورونو اصلاح وکړو؟**

**نو ای لوستونکیه ته ددي سوال جواب ته غوږ شه زه ددي جواب په یو څو نصیحتونو کي کوم دالله نه امید دی چي پدي سره ټول امت ته نفع ورسوي او ددي امت دبچیانو افکار د یو نوي کور د جوړولو طرفته متوجه کړي**

**او دا نصیحتونه په دوه شیانو باندي مشتمل دي ۱ د مصلحتونو حاصلول او ددي نه مراد دادي چي مونږ امر بالمعروف وکړو ۲ د مفاسدو دفع کول ددي نه مراد دمنکراتو ختمول دي**

**نو راځه چي په خپل مقصد باندي شروع وکړو**

# د کور جوړول

## ۱ د ښې او نیکې ښځې اختیارول

الله تعالی فرمایی«**وَأَنكِحُوا الْأَيَامَى مِنكُمْ وَالصَّالِحِينَ مِنْ عِبَادِكُمْ وَإِمَائِكُمْ.. إِن يَكُونُوا فُقَرَاءَ يُغْنِهِمُ اللَّهُ مِن فَضْلِهِ وَاللَّهُ وَاسِعٌ عَلِيمٌ**»سورة النور الآية 32

((او کونډې ښځې په نکاح باندی ورکړی او خپلو نیکانو غلامانو او وینزو لره نکاح وکړی  که چیرته دوی غریبانان وی نو الله به په خپل فضل سره دوی مالداره کړی او الله پراخه او پوهه ذات دی))

د هر مسلمان لپاره پکار دی چی د یوی نیکی ښځی انتخاب وکړی او دا په لاندی شرطونو باندی

" **تُنْكَحُ الْمَرْأَةُ عَلَى إِحْدَى خِصَالٍ ثَلَاثٍ: عَلَى مَالِهَا، عَلَى جَمَالِهَا، عَلَى دِينِهَا، فَعَلَيْكَ بِذَاتِ الدِّينِ وَالْخُلُقِ تَرِبَتْ يَمِينُكَ**"(1)

---

(1) متفق علیه

((د څلورو صفاتو د وجی نه د ښځی سره نکاح کولی شی ۱ د هغی د مال دوجی ۲ دهغی دنسب د وجی ۳ دهغی دښایست دوجی ۴ دهغی ددین دوجی نو ددینداری سره نکاح وکړه کامیاب به شی))

نبي كريم ﷺ فرمايي: ((الدُّنْيَا مَتَاعٌ, وَخَيْرُ مَتَاعِهَا الْمَرْأَةُ الصَّالِحَةُ)(1))

ترجمه :دنیا ټولی فایدی فایدی دی او نیکه ښځه ددنیا د غوره فایدو څخه ده

((لِسَانًا ذَاكِرًا، وَقَلْبًا شَاكِرًا، وَزَوْجَةً تُعِينُ عَلَى الْآخِرَةِ ")(2))

په تاسو کی دی یو تن شکر گزار زړه والا وی او د ذکر کونکی ژبی والا دی او باید دداسی ښځی سره دی نکاح وکړی چی د اخرت په اعمالو کی د خاوند مدد کوی

او په یو روایت کی د ی رسول الله ﷺ معاذ ته فرمایی" يَا مُعَاذُ، قَلْبٌ شَاكِرٌ، وَلِسَانٌ ذَاكِرٌ، وَزَوْجَةٌ صَالِحَةٌ تُعِينُكَ عَلَى أَمْرِ دُنْيَاكَ، وَدِينِكَ خَيْرٌ، مَا اكْتَنَزَ النَّاسُ "(3)
ای معاذ باید ستا زړه د ی شکر گزار وی او ژبه دی ذکر کونکی او داسی ښځه چی ستا مدد ددین او دنیا په کارونو کی کوی ستا لپاره د هغه څه نه غوره ده چی خلک یی خزانه کوی

«تَزَوَّجُوا الْوَدُودَ الْوَلُودَ، فَإِنِّي مُكَاثِرٌ بِكُمُ الْأُمَمَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ»(4)
د ډیر محبت او ډیر بچو راوړونکی ښځو سره نکاح وکړی بیشکه زه غواړم چی د قیامت په ورځ ستاسو په کثرت سره په نورو انبیا باندی فخر وکړم

---

(1) رواه مسلم 1468 (2) رواه أحمد " 282/5" (3) رواه البيهقي صحيح الجامع 4285 (4) رواه أحمد و هو صحيح الإرواء 6/ 195

«عَلَيْكُمْ بِالْأَبْكَارِ، فَإِنَّهُنَّ أَنْتَقُ أَرْحَامًا، وَأَعْذَبُ أَفْوَاهًا، وَأَقَلُّ خِبًا، وَأَرْضَى بِالْيَسِيرِ»(1)

تاسو باید د د ځوانو ښځو سره نکاح وکړی ځکه د هغوی خولی خوږی وی او رحمونه یی پراخه وی په لګ شی باندی راضی کیږی او په یو روایت کی راځی هغوی دهوکی کمی ورکوی

لکه څنګه چی نیکه ښځه د هغه څلور شیانو څخه ده چی د سعادت اسباب دی نو دغه شان بده ښځه د هغه څلور شیانو څخه ده چی د بدبختی اسباب دی

لکه په یو صحیح حدیث کی راغلی دی نبی علیه السلام فرمایی(( فَمِنَ السَّعَادَةِ: الْمَرْأَةُ تَرَاهَا تُعْجِبُكَ، وَتَغِيبُ فَتَأْمَنُهَا عَلَى نَفْسِهَا، وَمَالِكَ، وَمِنَ الشَّقَاوَةِ)) (2)

د سعادت د اسبابو نه یو هغه ښځه ده چی ته ورته وګوری نو تا تعجب کی اچوی نو ته هغه د هغی د نفس او ستا مال باره کی امانت ګره ګڼړی

: الْمَرْأَةُ تَرَاهَا فَتَسُوءُكَ، وَتَحْمِلُ لِسَانَهَا عَلَيْكَ، وَإِنْ غِبْتَ عَنْهَا لَمْ تَأْمَنْهَا عَلَى نَفْسِهَا

او دبدبختی داسبابو نه یو هغه ښځه ده چی ته ورته وګوری نو خفه کوی دی او ستا په خلاف یی ژبه راویستلی وی او ته هغه د هغی د نفس او ستا د مال باره کی امانت ګره نه ګڼړی

او دغه شان بالعکس باید د هغه کس په حال کی وګتلی شی چی هغه دیوی ښځی د نکاح مطالبه کوی او باید هغه کی دا لاندینی شرطونه موجود وی

«إِذَا أَتَاكُمْ مَنْ تَرْضَوْنَ خُلُقَهُ وَدِينَهُ فَزَوِّجُوهُ، إِلَّا تَفْعَلُوا تَكُنْ فِتْنَةٌ فِي الْأَرْضِ وَفَسَادٌ عَرِيضٌ»(3)

کله چی تاسو ته هغه څوک د نکاح مطالبه وکړی چی ستاسو دهغه اخلاق او دین خوښ وی نو هغه سره رشته وکړی او که چیرته دا کار ونه کړی نو په ځمکه کی به فتنه او فساد وی

(1) صحیح ابن ماجه (8051). (2) رواه ابن حبان وهو في السلسلة الصحيحة 282 (3)رواه ابن ماجه 1957

**اوددی ټولو مذکوره شیانو سره باید دهغه باره کی پوښتنه او تحقیق وکړی شی او معلومات راجمع کړی شی او باید هغه چا باندی اعتماد وی چی هغوی د یو چا باره کی معلومات نقل کوی  دی دپاره چی کور وران او ویجاړ نشی**

**او کله چی نیک سړی د نیکی ښځی سره یو ځای نو دواړه یو ښه کور جوړوی ځکه د پاکی ځمکی فصل دالله په اجازه راوځی او کومه ځمکه چی خبیثه وی د هغی فصل کوټه راوځی**

## 2 د خپلې ښځې د اصلاح کولو لپاره کوښښ کول

**کله چیرته ښځه نیکه او صالحه وه نو دا خو ډیره ښه خبره ده او دا د الله تعالی فضل دی چی په چا یی وکړی لیکن که چیرته هغه بد اخلاقه او بد کاره وی نو باید خاوند د هغی د اصلاح کولو کوشش وکړی**

**او داسی صورتحال په لاندینی حالاتو کی پیښیږی**

**۱ چی یو کس د یوی غیر دینداری ښځی سره نکاح وکړی دا پدی وجه چی دا کس خو یا پخپله ددین پرواه نه لرله یا یی ددین پرواه لرله لیکن پدی نیت یی ورسره واده وکه چی اصلاح یی وکړی یا د رشته دارو د زبردستی دوجی نه یی کړی وی نو پدی صورتونو کی باید بهر پور کوشش وکړی چی هغی نیکی لاری ته راواړوی**

**او باید سړی دا عقیده ولری چی هدایت صرف دالله له طرفه وی او صرف هغه کولی شی چی یو څوک نیک کړی**

**او دا دالله احسان چی د ښځی اصلاح کول دی الله په زکریا علیه السلام باندی کړی وی**

**" وأصلحنا له زوجه " سورة الأنبياء ، الآية 90**

**((او مونږ د هغه د ښځی اصلاح وکړه ګرځولی وی))**

**او ددی اصلاح نه مراد اصلاح بدنی او دینی دواړه دی**

**ابن عباس رضی الله عنهما ددی ایت په تفسیر کی لیکی چی د هغی بچی به نه کیدل نو بچی زیږول یی شروع کړل**

**او عطا فرمایی د هغی ژبه کی تیزی وه نو الله د هغی اصلاح وکړه**

**او د ښځی د اصلاح کولو دپاره څه وسایل دی چی هغی نه بعضی په لاندی ډول دی**

**۱دهغی د عباداتو د اصلاح کوشش کول او ددی تفصیل لاندی راروان دی**

۲دهغی په ایمان کی د زیاتی کوشش کول او دا په لاندی شیانو باندی کیږی

۱ هغی لره په لاندی عباداتو باندی ترغیب ورکول

دشپی عبادت

۲ د قران تلاوت

۳ د اذکار یادول او د هر ذکر په مناسب وخت کی کول

۴ صدقه ورکول

۵ د هغه اسلامی کتابونو لوستل چی فایده مند وی

۶ د اسلامی بیانونو چی علمی او ایمانی وی دهغی اوریدل

۷دهغی لپاره داسی ملګری ښځی کتل چی دینداره وی او د هغی سره خورولی پالی او دهغوی سره ددین خبری او دینی مجلسونه کوی

۸ د هغی نه شر دفع کول او هغه پدی باندی چی د بداخلاقه ښځو او هغه ځایونو څخه هغه لری وساتل شی چی د شر وی

# په کور کي د ايمانياتو اهتمام کول

## ۳ خپل کور د الله د ذکر ځاي وګرځوه

د ابو موسى رضي الله عنه نه روايت دی " مَثَلُ الْبَيْتِ الَّذِي يُذْكَرُ اللهُ فِيهِ وَالْبَيْتِ الَّذِي لَا يُذْكَرُ فِيهِ مَثَلُ الْحَيِّ وَالْمَيِّتِ (1)"

رسول الله ﷺ فرمايي:(( د هغه کور مثال چي د الله ذکر پکي کيږي او د هغه کور چي د الله ذکر پکي نه کيږي د دی دواړو مثال د مړي او ژوندي دی))

نو بايد کورنه د الله د ذکر د ټولو اقسامو ځاي جوړ کړی شي برابره ده که زړه ذکر وي او که په ژبه د مونځ په شکل کي وي او که د قران لوستو د علم مذاکره په شکل کي وي او که د مختلفو ديني کتابونو د لوستلو په شکل کي

ليکن افسوس دی چي نن دمسلمانانو بيشماره کورونه د الله د ذکر نه کولو په وجه مړه دي لکه چي حديث کي تير شو او په هغي کي د شيطان اوازونه او ګاني بجاني غيبت بهتان او چغل خوري په کثرت سره موجود دي

او نن صبا د کورونو دا حال دي چي هغه په منکراتو او د الله په نافرمانيانو باندي ډک دي لکه حرام اختلاط د ښځو ډولونه ښکاره کول او د ګاونډيانو غير محارمو د يو بل سره ناسته پاسته

نو څنګه به فرشتي داسي کورونو ته داخلي شي چي دا يي حال وي نو ای مسلمانانو ورونو خپل کورونه د الله په ذکر باندي اباد کړئ

---

(1).رواه مسلم في صحيحه (977)

# ۴ د خپلو کورونو نه قبله  جوړه کړئ

مطلب دا چې د خپلو کورونو څخه د عبادت ځایونه جوړ کړئ

الله تعالی فرمايي((وَأَوْحَيْنَا إِلَىٰ مُوسَىٰ وَأَخِيهِ أَن تَبَوَّآ لِقَوْمِكُمَا بِمِصْرَ بُيُوتًا وَاجْعَلُوا بُيُوتَكُمْ قِبْلَةً وَأَقِيمُوا الصَّلَاةَ ۗ وَبَشِّرِ الْمُؤْمِنِينَ )) (يونس: 78)

(( مونږ موسى او هارون ته وحي وکړه چې د خپل قوم لپاره په مصر کي کورونه جوړ کړي او خپل کورونه قبله وګرځوي مونځ قايم کړي او مومنانو ته زيری ورکړه))

ابن عباس رضي الله عنهما ددي ايت په تفسير کي ليکي چې هغوئ ته حکم شوی وو چې خپلو کورونو کي مساجد جوړ کړي

ابن کثير رحمه الله فرمايي دا حکم ورته هغه وخت شوی وو چې هغوی باندي د فرعون او د هغه دقوم له طرفه امتحانونه ډير شو نو هغوئ ته حکم وشو چې کثرت سره مونځونه کوئ والله اعلم(1)

لکه څنګه چې الله تعالی فرمايلي دي

وَاسْتَعِينُوا بِالصَّبْرِ وَالصَّلَاةِ ۚ وَإِنَّهَا لَكَبِيرَةٌ إِلَّا عَلَى الْخَاشِعِينَ)) البقرة (45)

ای د ايمان والاو د الله تعالی نه د مونځ او صبر په ذريعه سره مدد وغواړئ بيشکه الله تعالی د صبر کونکو ملګری دی

او په حديث کي راځي د حذيفه رضي الله عنه نه روايت د ی( كان النبي صلى الله عليه وسلم إذا حزبه أمرٌ صلى)(2)

نبی عليه السلام ته چي به کله په کوم کار کي مشکل راغلي نو مونځ به يي کوو

---

(1)تفسير الطبري 11 ,153(2)رواه احمد 22210

نو دي نه دا معلوميږي چي کورونو کي  دالله د عبادت کولو ډير اهميت دي خاص طور باندي کله چي د پريشانۍ او کمزورۍ حالت  وي او دغه شان په هغه حالاتو کي چي مسلمانانو باندي داسي وخت راشي چي د کفارو مخامخ مونځ نشي ادا کولي او مونږ بايد پدي مقام کي د مريم عليها السلام د محراب تذکره هم وکړو هغه چي الله تعالى يي په قران کي پدي ډول ذکر کړی دی

**((كُلَّمَا دَخَلَ عَلَيْهَا زَكَرِيَّا الْمِحْرَابَ وَجَدَ عِندَهَا رِزْقًا ۖ قَالَ يَا مَرْيَمُ أَنَّىٰ لَكِ هَٰذَا ۖ قَالَتْ هُوَ مِنْ عِندِ اللَّهِ ۖ إِنَّ اللَّهَ يَرْزُقُ مَن يَشَاءُ بِغَيْرِ حِسَابٍ )** ال عمران(37)

((هر کله چی به زکريا په هغی باندی داخل شو چی محراب کی به ناسته وه نو وبه يی ليدل چی د هغی مخی ته رزق او خوراک پروت دی))

او صحابه کرامو به د فرض مونځ نه علاوه د نفل مونځ په کور کی ډير اهتمام کوو

او دی باره کی يو حديث په لاندی ډول دی

د محمود بن الربيع نه روايت دی**((أن عِتبانَ بنَ مالكٍ . وكان من أصحابِ النبيِّ صلى الله عليه وسلم . ممن شَهِدَ بدرًا من الأنصارِ : أنه أتى رسولَ اللهِ صلى الله عليه وسلم فقال : يا رسولَ اللهِ . إني أنكَرْتُ بصري . وأنا أُصلِّي لقومي . فإذا كانت الأمطارُ سال الوادي الذي بيني وبينَهم . لم أستَطِعْ أن آتي مسجدَهم لأُصلِّيَ لهم . فوددْتُ يا رسولَ اللهِ . أنك تأتي فتُصلِّي في بيتي، فأتَّخِذُه مُصلًّى . فقال: سأفعَلُ إن شاءَ اللهُ . قال عِتبانُ : فغدا رسولُ اللهِ صلى الله عليه وسلم وأبو بكرٍ حين ارتفَعَ النهارُ . فاستأذَنَ النبيُّ صلى الله عليه وسلم فأذِنتُ له . فلم يَجلِسْ حتى دخَلَ البيتَ . ثم قال لي: أين تُحِبُّ أن أُصلِّيَ من بيتِك ؟ فأشَرْتُ إلى ناحيةٍ من البيتِ . فقام النبيُّ صلى الله عليه وسلم فكَبَّرَ، فصَفَفْنا . فصلَّى ركعتين ثم سلَّمَ ،(1)**

---

(1) رواه البخاري (524)

**چی عتبان بن مالک چی د نبی علیه السلام صحابی دی او د انصارو د طرفه د بدر غزوه کی هم حاضر شوی وو هغه یو ورځ رسول الله ته راغلی او ویی فرمایل ای دالله رسوله زما نظر کمزوری شوی دی او زه خپل قوم ته مسجد کی مونځ ورکوم نو کله چی باران وشی زه د اوبو او خوړ د وجی مسجد ته نشم تلی چی خپل قوم لپاره امامت وکړم نو زه دا خوښه ګنړم چی ته زما کور ته راشی او په هغی کی مونځ وکړی نو زه به هغه د مونځ لپاره ځای وګرځوم**

**نو نبی کریم صلی الله علیه وسم وفرماییل ان شاءالله زه به دا کار وکړم**

**عتبان فرمایی نبی علیه السلام او ابو بکر په داسی وخت کی راغلی چی نمر راختلی وو نو نبی علیه السلام زما نه اجازت وغوښتو ما ورته اجازت وکه او هغه دکیناستو نه مخکی ماته وویل چی کومه کمره کی مونځ کول غواړی ما د کوټی یو جانب ته اشاره وکړه نو نبی علیه السلام هغی کی ودریده او الله اکبر یی ووایه مونږ هم صفونه جوړ کړل نو نبی علیه السلام دوه رکعته مونځ وکه او سلام یی وګرځوو**

## ۵ د کور دخلکو ایمانی تربیت کول

عایشه رضی الله عنها فرمایی (( كان رسول الله - صلى الله عليه وسلم - يصلي من الليل فإذا أوتر قال : قومي))(1)

رسول الله ﷺ به دشپی مونځ کوو چی کله به یی وتر وکړل نو ماته به یی اواز وکه ای عایشی پاڅه وتر وکړه

د ابو هریره رضی الله عنه نه روایت دی(( رَحِمَ اللَّهُ رَجُلًا قَامَ مِنَ اللَّيْلِ فَصَلَّى وَأَيْقَظَ امْرَأَتَهُ . فَإِنْ أَبَتْ نَضَحَ فِي وَجْهِهَا الْمَاءَ . رَحِمَ اللَّهُ امْرَأَةً قَامَتْ مِنَ اللَّيْلِ وَصَلَّتْ وَأَيْقَظَتْ زَوْجَهَا . فَإِنْ أَبَى نَضَحَتْ فِي وَجْهِهِ الْمَاءَ)) (2)

چی رسول الله ﷺ فرمایی الله دی په هغه کس باندی رحم وکړی چی د شپی راپاڅیږی او مونځ کوی او خپله ښځه هم راپاڅوی هغه هم مونځ کوی لیکن که چیرته هغه د پاڅیدو نه انکار وکړی نو دا دهغی په مخ باندی د اوبو داری وکړی او دغه شان الله د ی په هغه ښځه رحم وکړی چی دشپی مونځ کوی او خپل خاوند هم راپاڅوی که هغه نه راپاڅیږی نو مخ ته ورله داوبو داری وکړی

او زنانه وو ته د صدقی ترغیب ورکول دهغوی په ایمان کی زیادت پیدا کوی او دا یو عظیم عمل دی نبی علیه السلام یی ترغیب ورکړی دی

هغه فرمایی((یا معشر النساء تصدقن)) (3)

---

(1) .رواه مسلم (447). (2) أبو داود (8031) (3) متفق عليه

ای د زنانه و جماعت تاسو صدقی وکړی ځکه ماته تاسو راښودلی شوی یی چی اکثر جهنم ته روانی یی

او د خه سوچ څخه دا هم ده چی کور کی یو صندق کیخودی شی او د غریبانانو لپاره په هغی کی پیسی جمع کولی شی نو څه پیسی چی هغی کی جمع کیږی په هغی به د غریبانانو کار کیږی

او باید کور کی یو داسی څوک وی چی نفلی روژی لکه د ایام بیض عرفه تاسوعا عاشورا شعبان او محرم  روژی نیولو اهتمام کوی نو د کور نور خلک به هم  دهغه سره ملګرتیا کوی

## ۶ په شرعي اذکارو او هغه نفلي مونځونو باندي اهتمام کول چي کور کی ادا کولی شي

### او ددي د مثالونو څخه

کور ته د ننوتو اذکار

امام مسلم په خپل کتاب کي د جابر بن عبدالله په حوالی سره روایت کوی چی رسول الله ﷺ فرمایلی دی

. ((" إِذَا دَخَلَ الرَّجُلُ بَيْتَهُ فَذَكَرَ اللَّهَ عِنْدَ دُخُولِهِ وَعِنْدَ طَعَامِهِ , قَالَ الشَّيْطَانُ : لا مَبِيتَ لَكُمْ وَلا عَشَاءَ . وَإِذَا دَخَلَ فَلَمْ يَذْكُرِ اللَّهَ عِنْدَ دُخُولِهِ , قَالَ الشَّيْطَانُ : أَدْرَكْتُمُ الْمَبِيتَ . وَإِذَا لَمْ يَذْكُرِ اللَّهَ عِنْدَ طَعَامِهِ , قَالَ : أَدْرَكْتُمُ الْمَبِيتَ وَالْعَشَاءَ " )) (1)

((کله چي یو مسلمان کور ته داخل شي او دالله نوم یاد کړي نو شیطان خپلو ملګرو ته ووایي نن ستاسو لپاره دلته خوراک او شپه تیرول نشته او کله چي د اخل شي لیکن دالله نوم یاد نه کړي نو شیطان ووایي تاسو لپاره د اوده کیدو ځاي میلاو شو او کله چي د خوراک په وخت کي بسم الله ونه وایي نو شیطان ووایي تاسو د پاره خوراک میلاو شو))

(1) مسلم8102

## د کور نه د وتلو په وخت کي اذکار

**امام ابو داود په خپل کتاب کي د انس بن مالک رضي الله عنه په حوالي سره روايت کوي رسول الله ﷺ فرمايي(( مَنْ قَالَ يعني إذا خَرَج مِنْ بيتِهِ : بِسْم اللهِ توكّلْتُ علَى اللهِ . ولا حوْلَ ولا قُوةَ إلاَّ بِاللهِ . يقالُ لهُ هُديتَ وَكُفِيت ووُقِيتَ . وتنحّى عنه الشّيْطَانُ » ))(1)**

**(( کله چي يو کس د کور نه وتلو په وخت دا ووايي دالله په نوم سره زه ووزم او په الله باندي مي توکل کړی دی د ګناه نه پچ کول او د عبادت توفيق ورکول صرف د الله په لاس کي دی**

**نو نبی عليه السلام فرمايي د ي وخت کي به ديته وويل شي تاته هدايت وشو او الله ستا کافي شو ستا حفاظت وکړی شو نو بعضی شيطانان به هغه پسي شي يو شيطان به ورته ووايي تاسو هغه چا ته ضرر نشئ ورکولي چي هغه ته هدايت وشو او الله يي کافي شو او د هغه حفاظت وکړی شو))**

**<u>مسوال وهل</u>**

**د عائشي رضي الله عنها نه روايت دی**

**((قالت : " كان إذا دخل بيته بدأ بالسواك"))(2)**

**چي نبي عليه السلام به کله کور ته داخل شو نو مسواک به يي وهه**

---

(1) رواه أبو داود (5905)، وصححه الألباني في صحيح أبي داود. (2) رواه مسلم (44)

## ۷ دشيطان شړلو لپاره په کور کي سورت بقره بار بار لوستل

او دي باره کي بيشماره احاديث وارد دي چي بعضي په لاندي ډول دي

د ابو هريره رضي الله عنه نه روايت دی چي رسول الله فرمايي **((لا تجعلوا بيوتكم مقابر إن الشيطان ينفر من البيت الذي تقرأ فيه سورة البقرة.))(1)**

**(( د خپلو کورونو نه مقبري مه جوړوئ بيشکه شيطان دهغه کور نه تښتي چي هغي کي سورت بقره لوستلي کيږي))**

**او بل حديث کي دي رسول الله فرمايي په خپلو کورونو کي سورت بقره لولئ ځکه شيطان هغه کورته نشي ننوتی چي هغي کي سورت بقرة لوستلي کيږي**

**او ددي سورت داخيري دوه ايتونو د فضل او په کور باندي د هغي اثر باره کي** رسول الله ﷺ فرمايي **( إِنَّ اللَّهَ كَتَبَ كِتَابًا قَبْلَ أَنْ يَخْلُقَ السَّمَوَاتِ وَالْأَرْضَ بِأَلْفَيْ عَامٍ . أَنزَلَ مِنْهُ آيَتَيْنِ خَتَمَ بِهِمَا سُورَةَ الْبَقَرَةِ . وَلَا يُقْرَآنِ فِي دَارِ ثَلَاثَ لَيَالٍ فَيَقْرَبُهَا شَيْطَانٌ )(2)**

**الله تعالی د اسمانونو او ځمکو د پيدايش نه دوه زره کاله مخکي يو کتاب ليکلی وو او د هغي نه يي دوه ايتونه نازل کړي چي ددي سورت په اخير کي دي دا چي کوم کور کي دري شپي ولوستي شي هغي ته شيطان نشي راتلی**

---

(1) رواه مسلم 1 ,539(2) رواه الحاكم في المستدرك (165/1

# په کور کی علم شرعی

## 8

## د کور خلکو ته تعلیم ورکول

**د کور خلکو ته تعلیم ورکول یوه فریضه ده باید د کور مالک ددي اهتمام وکړي دي دپاره چي د الله ددي قول تابعداري وشي**

**((يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا قُوا أَنفُسَكُمْ وَأَهْلِيكُمْ نَارًا وَقُودُهَا النَّاسُ وَالْحِجَارَةُ عَلَيْهَا مَلَائِكَةٌ غِلَاظٌ شِدَادٌ لَا يَعْصُونَ اللَّهَ مَا أَمَرَهُمْ وَيَفْعَلُونَ مَا يُؤْمَرُونَ ))**

**(التحريم:6)**

**او دا ايت اصل دی په باره د تعليم د اهل كي د هغوئ په تربيت او هغوئ ته د نيكی حكم او د بدئ نه منع كولو باره كي**

**او اوس زه هغه اقوال ذكر كوم چي مفسرينو ددي ايت په تفسير كي ذكر كړي ديی چي هغي نه هغه څه معلوم شي چي د كور مالک له په هغي باندي اهتمام پكار دی**

**قتاده فرمايي د كور مالک به د كور خلكو ته د الله د طاعت حكم كوي او دهغه د نافرمانی نه به يي منع كوي او هغوئ سره به ددين په كارونو كي مدد كوي**

**ضحاک او مقاتل فرمايي**

**په هر مسلمان باندي لازم دي چي خپلو رشته دارانو ته د هغه څه تعليم وركړي چي الله پري حكم كړی دی يا تري هغه منع كړي**

**او علي رضي الله عنه فرمايي: ((دوئ ته تعليم او ادب وركړئ))(1)**

**امام طبري فرمايي: مونږ له پکار دي چي خپلو اولادو او اهل له ددين او خير تعليم ورکړو او هغه ضروري ادب ورته وښاييو چي د هغي نه يي چاره نشته(2)**

**او کله چي رسول الله ﷺ د غلامانو او وينزو د تعليم ترغيب ورکړی دی نو د ستا اولاد او اهل خو پدي ترغيب کي بالاولی داخليږی**

**امام بخاري رحمه الله په خپل صحيح کي باب تړلی**

**(( باب تعليم الرجل أمته وأهله))(3)**

**((باب دی په باره د تعليم د سړي کي خپل اهل او وينزي ته))**

**بيا يي په باب کي د نبی عليه السلام دا حديث ذکر کړی دی ((ورجل كانت عنده أمة يطؤها فأدبها فأحسن أدبها وعلمها فأحسن تعليمها ثم أعتقها فتزوجها فله أجران))**

**((ددری کسانو لپاره دوه اجره دي**

**او يو هغه کس چي دهغه په ملکيت کی وينزه وي نو هغه ورله ادب ورکړي او ښه ادب ورکړي او تعليم ورله ورکړي په ښه طريقه باندي بيا يي ازاده کړي او واده ورسره وکړي نو دهغه لپاره دوه اجره دي))**

**امام ابن حجر ددي حديث په شرح کي ليکي ددي حديث مطابقت د باب سره د وينزي باره کي صريح او نصا دی ليکن د اهل باره کي مطابقت په طريقه دقياس سره دی ځکه ازاد اهل او اولاد ته د الله دفرايضو او درسول الله دسنتو تعليم او تربيت ورکول د وينزو د تعليم نه ډير ضروري دی(4)**

---

(1)شعب الايمان 8182(2)احکام القران 5.31(3)البخاري 97(4)فتح الباري 1,190

کله انسان د خپلو مشاغلو او مصروفیاتو د وجي ددي فریضي څخه غافل وي لیکن ددي حل دادي چي د هغوی لپاره یو ورځ مقرره کړي چي هغي کي یو مجلس قایموي او خپل اهل او نورو رشته دارانو ته تعلیم ورکوي

او دي باره د رسول الله ﷺ طریقه ملاحظه کړئ

امام بخاري رحمه الله فرمایي:(( باب هل یجعل للنساء یوم على حده فی العلم))

ترجمه: ایا د ښځو لپاره یوه ورځ د تعلیم په غرض خاص کولی شي

او پدي کي یي دابو سعید رضي الله عنه په حوالي سره حدیث نقل کړی

**يا رسولَ الله، غلَبَنا عليك الرجال، فاستَأثروا بك، وذهَبوا بحديثِك، فاختَرْ لنا يومًا من تلقاءِ نفسك نأتيك فيه، فتَعِظُنا بمَواعظِ الله، وتُعلِّمنا ممّا علمك اللهُ، فقال: ((موعدكنَّ بيتُ فلانة، يوم كذا وكذا))(1)**

(( چي رسول الله صلى الله علیه السلام ته زنانه و شکایت وکه چي په تاباندي زمونږ په مقابله کي سړي غالب شول نو مونږ دپاره یوه ورځ وټاکه هغه ورسره د یوي ورځي وعده وکړه هغي کي ورسره میلاو شو او وعظ ورته وکه او په نیکو کارونو امر یي ورته وکه))

امام ابن حجر مزید فرمایي: او د سهیل بن ابي صالح عن ابیه عن ابي هریره په سند سره همدا قصه روایت ده او هغي کي دا الفاظ دي

((ستاسو لپاره ټاکلی شوی ځاي دفلانی ښځي کور دی نو همدغه کور ته بیا رسول الله ورغلي او هغوی ته یي حدیث بیان کړل))

او ددي حدیث نه د زنانه په تعلیم باندي حرص معلومیږي او دا هم ترینه معلومیږي چي د صحابه ښځي به په تعلم ددین باندي څومره حرصناکي وي

---

(1)البخاري :101

او صرف سړو ته دين بيانول د داعيانو ددين او دمالكانو دكورونو  يو لوي تقصير دی

ليكن كيداي شي بعضي لوستونكي دا سوال وكړي چي فرض كړه مونږ د زنانه لپاره يو وخت مقرر كه او هغوئ ته مو خبر وركه چي پدي ورځ د تعليم لپاره راجمع شئ نو پدي جلسو د علم كي به مونږ هغوئ ته څه شی وړاندي كوو او په څه باندي به شروع كوو

نو ددي په جواب كي زه تاته يوه مشوره دركوم چي هغه به ستا لپاره يو منهج وي ته به پري چليږي په ميدان د تدريس د اهل ستا كي په عام طور سره او د زنانه په تعليم كي خاص طور سره

تفسير د علامه السعدي رحمه الله چي نوميږي په ((تيسير الكريم الرحمان في تفسير كلام المنان))

دا يو اسان تفسير دی چی په اسان اسلوب اوطريقه باندي ليكلی شوی دی ددي نه ته هغوئ ته يو يو ايت تعليم كوه

رياض الصالحين ددي كتاب بعضي احاديث ورته شرح كوه او ددغه احاديثو نه چي كوم فوايد معلوميږي هغه ورته بيانوه

او ددي يعني د هر حديث فايدي او دهغي د شرح لپاره بايد ته(( نزهه المتقين)) نوم باندي يو كتاب دی هغي ته رجوع وكړي

## ((حسن الاسوة بما ثبت عن الله ورسوله في النسوة ))

داكتاب دعلامه صديق حسن خان دی

دغه شان دا هم ضروري ده چي ته ښځو ته بعضي فقهي احكام ورزده كړي لكه احكام د طهارت د وينو مونځ زكات روژي حج د خوراك څښاك لباس زينت د فطرت احكام د محارمو باره كي احكام د ګاني بجاني او تصويرونو احكام وغيره

او ددی احکامو مهم مصادر د اهل علمو فتاوی جات دي لکه فتاوی د الشیخ ابن باز او ابن العثیمین او نورو علماء کرامو

برابره ده که هغه په لیکلو کي وي یا په ریکارډ او کیستو کي وي

او دښځي او اهل بیتو د تعلیم په جدول او تقسیم اوقات کي دا هم راځي چي هغوئ ته ترغیب ورکړی شي چي دعلماء یا طالب علمانو په درسونو کي چي کومو کي حاضریدل ورله ممکن وي حاضري شي

او پدي سلسله کي باید د قران رادیو درسونو ته هم غوږ نیسي

او باید دکور مالک دي خپلي زنانه د اسلامی کتابونو میلي ته هم بوزي لیکن پدي شرط چي شرعي شروط پکي موجود وي

# ۹ پخپل کور کي یوه اسلامی مکتبه جوړه کړه

په کور کي مکتبه جوړول د هغه شیانو څخه ده چي په تعلیم د کور والاو کي مدد ورکوي او هغوئ ته په دین باندي دپوهي فرصت ورکوي او هغوئ سره پدي کي مدد کوي چي د شریعت په احکامو باندي عمل وکړي

او ضروري نده چي دا مکتبه دي ډیره غټه وي بلکي ضروري داده چي پدي کي مهم کتابونه کیخودلی شي

او هغه په داسی ځاي کي کیخودلی شي چي راغستل یي هر چا لپاره اسان او ممکن وي او د کور خلکو ته ترغیب ورکول چي کتابونه ولولي

او باید د مکتبي لپاره ځاي مناسب پاک او داسي ځاي وي چي هغه کي خلک خوب کوي یا د میلمنو کمره وي دي لپاره چي هر فرد وکولی شي چي په استمرار سره کتاب مطالعه کړي

او دمکتبی مضبوطوالی پدي کي دی چي هغه پداسي کتابونو باندي مشتمله وي چي مختلف مسائل پکي بیان شوي وي او ماشومانو لره هم مفید وي په خپلو سبقونو د مدرسه کي او باید مکتبه پداسي کتابونو باندي مشتمله وي چي د هر مستوی برابر وي چي ماشومان او غټان زنانه او سړي  ترینه یو شان استفاده وکړي

او باید څه داسي کتابونه دي پکي هم کیږدي چي د میلمنو لپاره یي هدیه کي ورکوي یا د ماشومانو ملګرو او هغه کسانو ته په طور د تحفه ورکوي چي د هغه کور ته راځي سره ددي چي د هغي چاپ اعلی او محقق وي او احادیث پکي تخریج کړی شوي وي او کله چي یو کس مکتبه جوړول غواړي نو باید د هغه کسانو سر ه دي مشوره وکړي چي د کتابونو د پیشئ په میلو کي کار کوي او پدي باب کي دهغوئ د مشورو او اقتراحاتو نه استفاده کول پکار دي

او د یو کتاب په اسانی سره پیدا کولو لپاره پکار د ی چی مکتبی ته د موضوعاتو مطابق ترتیب ورکړی شی لکه د تفسیر کتابونه په یوه خاص خانه کی کیخودلی شی د حدیث کتابونه په بله کی او د فقهی په بله کی او دغه شان نور او دکور یو کس

**باید دمکتبی فهرس جوړ کړی چی الف بایی ترتیب لری دی لپاره چی کتاب تالاش کول اسان وی**

**او ډیر کله بعض خلک چي د کتابونو شوقیان وي هغوی تپوس کوي په باره د نومونو د اسلامي کتابونو کي دي وجي نه زه غواړم چي د بعضي مفید کتابونو نومونه په لاندي ډول ذکر کړم**

**په تفسیر کي :تفسیر ابن کثیر ۲ تفسیر ابن السعدی ۳ زبده التفسیر د الاشقر ۴ بدایع التفسیر د ابن القیم ۵ اصول التفسیر دابن العثیمین ۶ لمحات في علوم القران د محمد صباغ**

**په حدیث کي :صحیح الکلم الطیب ، عمل المسلم فی الیوم واللیله یا الصحیح المسند من اذکار الیوم واللیله، ریاض الصالحین او د هغي شرح ((نزهه المتقین))**

**مختصر صحیح البخاري دالزبیدي، مختصر صحیح مسلم دامام منذري، صحیح الجامع الصغیر او ضعیف الجامع الصغیر، صحیح ترغیب او ترهیب ،السنه ومکانتها فی التشریع، قواعد وفواید من الاربعین النوویه لناظم سلطان**

**په عقیده کي : فتح المجید شرح کتاب التوحید سره د تحقیق د شیخ شعیب الارنووط ، ۲ اعلام السنة المنشوره، ۳ شرح العقیده الطحاویه سره د تحقیق د شیخ البانی ۴ سلسله العقیده د شیخ سلیمان الاشقر، ۵ اشراط الساعه د یوسف وابل.**

**په فقه کي : منار السبیل دابن ضویان سره د ارواء الغلیل د شیخ الباني ۲ زاد المعاد لابن القیم ۳ المغني لابن قدامه ۴ فقه السنه ۵ الملخص الفقهي د شیخ صالح فوزان ۶ مجموع فتاوی د ابن باز عثیمین او ابن جبرین**

**۷ صفة صلاة النبي ﷺ د شیخ الباني او ابن باز ۸ مختصر احکام الجنائز دشیخ الباني**

**په اخلاق اوتزکیه د نفسونو کي :۱ تهذیب مدارج السالکین ۲ الفواید ۳ الجواب الکافي ۴ طریق الهجرتین ۵ باب السعادتین ۶ الوابل الصیب ورافع الکلم الطیب د ابن القیم لطائف المعارف دابن رجب تهذیب موعظه المؤمنین غذا الالباب**

**په سیرت او تاریخ کي :البدایه والنهایه دابن کثیر ۲ سیر اعلام النبلا د ذهبي**

**مختصر الشمائل المحمدیه د ترمذي کتاب چي شیخ الباني مختصر کړی دي،**

العواصم من القواصم د ابن العربي، الرحيق المختوم دا مباركفوري، المجتمع المدني د اكرم عمري ،منهج كتابةالتاريخ الاسلامي د محمد بن صامل السلمى

دغه شان نور كتابونه هم شته په مختلفو علومو كي چي هغي نه كتابونه د شيخ عبدالوهاب دي دشيخ ناصر السعدي د عمر ابن سليمان الاشقر د محمد مقدم د استاذ محمد حسين كتابونه د شيخ جميل زينو، كتابونه د شيخ حسين العوايشيه كتاب الايمان د محمد نعيم ياسين، الولا والبراء د شيخ سعيد القحطاني ،كتاب الانحرافات العقديه في القرني الثاني عشر والثالث عشر دعلي بن بخيت، المسلمون وظاهرة الهزيمة النفسية د عبدالله الشبانه ،او كتاب المرأة بين الفقه والقانون د السباعى او الاسره المسلمه أمام الفيديو والتلفيزيون مروان كجک أو المرأة المسلمة اعداداتها ومسولياتها د احمد ابا بطين او مسؤولية الأب المسلم في تربية ولده دأبو حارث عدنان حجاب المسلمة د احمد البرازي ،كتاب(( وجاء دور المجوس)) دعبدالله الغريب

كتابونه دشيخ بكر ابو زيد او بحثونه دشيخ مشهور حسن

او ددي نه علاوه نور هم بيشماره كتابونه شته دا ترينه مونږ د مثال په طور ذكر كړل او د ټولو نومونه ذكر كول دلته مقصود ندي

او هر مسلمان لره ښكار دي چي د كتاب په انتخاب كي فكر او مشوروه وكړي

او چا باندي چي الله د خير اراده وكړه هغه له په علم باندي فقاهت وركوي

# 10

## په کور کی یوه صوتی مکتبه جوړول

نن صبا تقریبا په هر کور کي د کیسټ یا سی ډي د چلولو لپاره وسائل او الات شته او دا شیان په خیر او شر دواړو کي استعمالولی شي نو څنګه مونږ باید دا دالله په رضا کي استعمال کړو؟

ددي مقصد د پوره کولو لپاره باید په کور کي یوه صوتي مکتبه جوړه کړو چي هغه د علماء، قاریانو ،واعظانو ددرسونو په کیسټو او ریکاردونو باندي مشتمله وي

او پدی کي هیڅ شک نشته چي د بعضي قراءو تلاوتونه اوریدل خاص طور سره کوم تلاوتونه چي د تراویح مونځ کی شوي وي د هغي د کور په خلکو باندي ډیر غټ تاثیر وي پدي جهت چي هغوی به د قران د معنو نه اثر اخلي او د بار بار اوریدو په وجه به اکثر ایاتونو ورته په یادو هم یادیږي دغه شان ددي په اوریدو به د شیطاني ګانو بجانو نه محفوظ وي ځکه په کومو غوږونو او سینو کي چي قران وي هغي کي شیطاني اوازونو لپاره ځاي نه وي

او د کور دخلکو په دین باندي په پوهه او دهغه مسایلو باره کي علم چي هغوی ته ورځ په ورځ پیښیږي پدي ټولو کي د کیسټو او درسونو اوریدلو ډیر غټ لاس دي

نو پدي سلسله کي زه دا مشوره ورکوم چي د علماء فتاوی جات واوریدل شي لکه دشیخ الباني شیخ ابن باز ابن عثیمین او شیخ صالح فوزان او نور داسي علماء چي هغوی په دینداری باندي مشهور وي

او ټولو مسلمانانو له پدي باب کي احتیاط پکار دی چي هغوی د چا نه فتوی اخلي ځکه دا دین دی نو تاسو باید وګوری چی د چا نه دین زده کوی

نو فتوی به د هغه چا نه اخلی چی د هغه علم تقوی او ورع معلومه وي او هغه په صحیح احادیثو باندي اعتماد لري د تعصب نه پاک وي

او ددلیل سره ګرځي نه متشدد وي او نه د ډیر تساهل نه کار اخلي

او دهغه علماء اوریدل چي د امت د فلاح لپاره کار کوي ددلیل مطابق خبره کوي او د بدئ نه خلک منع کوي په یو مسلمان کور کي د یو شخصیت جوړولو کي ډیر اهم رول ادا کوي

کیسټي بیشماره دي او دین بیانونکي هم ډیر دي لیکن مسلمان لره پکار دي چي د صحیح منهج صفات وپیژني او بیا د هغه بیانونکي بیان اوري چي هغي کي د حق نښی او د صحیح منهج صفات موجود وي

او د صحیح دعوت کونکي صفتونه بعضي په لاندی ډول دي

۱ د هغه عقیده باید د فرقه ناجیه او اهل سنت والجماعت وي د سنت تابعدار او د بدعت سره نفرت کونکی وي په خپل منهج کي معتدل وي نه به ډیر سخت او نه ډیر متساهل وي

۲ هغه باید په صحیح احادیثو باندي استدلال کوي او دضعیف او موضوع احادیثو نه اجتناب کوي

۳ هغه باید د امت او خلکو په حال باندي بصیرت لرونکی وي او د حال مطابق د هغوئ مسایل حل کوی او دهر مرض لپاره مناسبه دوا ورکوی خلکو ته هغه څه بیانوي چي هغوئ ورته حاجت لري

۵ هغه باید د حق وینا کوي او دخلکو رضا نه لټوي بلکي هر څه د الله د رضا لپاره بیانوي اګر که خلک ناراضه کیږي

دغه شان مونږ وینو چي د کیسټو او اډیو بیانونو او تلاوتونو په ماشومانو باندي ډیر اثر پریوزي ماشومان دهغي نه د قران ډیر سورتونه دورځی او شپی اذکار حفظ کوي او د هغي نه اسلامي اداب هم زده کوي

او دا خبره هم یاد ساتل پکار دی چي کیسټي باید په کور کي په مرتب شکل سره کیخودی شي چي د هغي راغستل هم اسان وي او د ماشومانو دوجي ضایع هم نشي

**او باید مونږ څه کیسټي خپلو دوستانو ته هدیه کړو یا یي هغوی ته د یوځو ورځو لپاره اعارتا ورکړو**

**او باید د پخلي په ځاي کي د خوب په کوټه کي یو ټیپ پروت وي چي زنانه د خپلو کارونو په وخت کي د هغي نه اسلامي بیانونه اوري او استفاده ترینه اخلي**

## 11 نيکانو خلکو او طلبه و د علم ته د خپل کور د زيارت کولو د عوت ورکول

((رَبِّ اغْفِرْ لِي وَلِوالِدَيَّ وَلِمَنْ دَخَلَ بَيْتِيَ مُؤْمِناً وَلِلْمُؤْمِنِينَ وَالْمُؤْمِناتِ وَلا تَزِدِ الظَّالِمِينَ إِلاَّ تَباراً))سورة نوح (28)

((ای ربه: زما او زما مور او پلار ته بخشش وکړه او هغه چاته چي دايمان په حالت کي زما کورته داخليږي او ټولو مومنانو او مومناتو ته او ظالمانو لره مه زياتوه مګر هلاکت))

د ايمان والاو يو کور ته داخليدل د هغه کور رڼا زياتوي او دهغوی د خبرو د هغوی سره بحث مباحثه او د هغوی نه پوښتني کولو په وجه ډيري فايدي حاصليږي

ځکه د عطرو والا سړی به يا تاته عطر هديه کوي يا به يی ترينه په پيسو باندي اخلي او يا به دهغه د طرفه د هغي خوشبو محسوسوي

او دهغوی سره خپل ماشومان پلار ورونه او زنانه د پردي نه شاته کينول د هغوی په تربيت کي اضافه کوي

او ته چي کله خپل کور ته خير داخل کړي نو ستا کور به د شر نه محفوظ وي او د ويجاړيدو نه به په امن وي

# ۱۲ دکورونو متعلق د بعضی شرعي احکاماتو زده کړه

**ددی څخه د تولو نه مخکي**

**<u>په کور کی مونځ کول دي</u>**

**هر چي سړی دی نو هغه باره کي نبی کريم ﷺ فرمايي: ((فَإِنَّ أَفْضَلَ صَلَاةِ المرء في بيته إلا الصلاة الْمَكْتُوبَةَ".))(1)**

((د سړي لپاره بهتر مونځ هغه دی چي کور کي يې ادا کړي مګر فرض مونځ چي هغه به مسجد کي ادا کوي))

**نو تاباندي واجب ده چي مسجد کي مونځ وکړي مګر د عذر د وجي که درنه پاتي شي او کور کي يې وکړي نو خير دی**

**او هر چي ښځي دي نو د هغو لپاره په هغه ځاي کي مونځ کول بهتر دی چی هغه ډير پردي والا وي**

**نبی عليه السلام فرمايي:**

**(( بهترين مونځ دښځي د هغي د کوټی په جوړ ځاي کي دی يعنی پټ ځاي کي)**

---

**(1) رواه البخاري (137)**

**بايد ميلمه د چا په کور کي امامت يا د دهغه په ځاي باندي د ناستي نه اجتناب وکړي مګر که هغه ورته اجازت ورکړي**

**نبی کريم ﷺ فرمايي:(( ولا يؤم رجل رجلا في سلطانه ولا في أهله ولا يجلس على تكرمته إلا بإذنه.))**(1)

**(( يو کس دي پټاسو کي د چا په ملکيت يا کور کي امامتي نه ورکوي او د هغه د عزت په ځاي دي هم نه کيني مګر که هغه اجازت وکړي))**

**يعني د يو کور والا يا د مسجد د امام په ځاي باندي به امامتي نه ورکوي اګر که دا ميلمه د هغه نه ښه قاري وي**

**دغه شان د يو کس لپاره جايز ندي چي د کوربه په يو خاص ځاي يا د هغه په کټ کي کيني مګر د هغه په اجازت سره**

---

**.(1) رواه مسلم (376)**

اجازت غوښتل

**((يا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لا تَدْخُلُوا بُيُوتاً غَيْرَ بُيُوتِكُمْ حَتَّى تَسْتَأْنِسُوا وَتُسَلِّمُوا عَلَى أَهْلِهَا ذَلِكُمْ خَيْرٌ لَكُمْ لَعَلَّكُمْ تَذَكَّرُونَ (27) فَإِنْ لَمْ تَجِدُوا فِيهَا أَحَداً فَلا تَدْخُلُوهَا حَتَّى يُؤْذَنَ لَكُمْ وَإِنْ قِيلَ لَكُمُ ارْجِعُوا فَارْجِعُوا هُوَ أَزْكَى لَكُمْ وَاللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ عَلِيم (28) لَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ أَنْ تَدْخُلُوا بُيُوتاً غَيْرَ مَسْكُونَةٍ فِيهَا مَتَاعٌ لَكُمْ وَاللَّهُ يَعْلَمُ مَا تُبْدُونَ وَمَا تَكْتُمُونَ (29)))**

((ای مومنانو د خپلو کورونو نه علاوه نورو کورونو ته مه داخلیږی تر هغه چی

**تاسو د کور والا نه اجازت او په هغوی باندی سلام نه وی اچولی دا ستاتو لپاره بهتره دی که چیرته تاسو د فکر نه کار اخلی**

**که چیرته تاسو پدغه کورونو کی څوک مونده نه کړی نو هغی ته مه ننوځی تردی چی تاسو ته اجازه وشی او که تاسو ته وویل شی چی واپس شی نو واپس شی دا ستاسو لپاره ډیر پاکونکی دی او الله تعالی پوهه دی په هغه عملونو چی تاسو یی کوی))**

**دغه شان فرمایی((وَأْتُوا الْبُيُوتَ مِنْ أَبْوَابِهَا))**(البقرة 189)

((**کورونه ته ددروازو نه راځی))**

**((هغه ځای ته بغیر داجازت نه ننوتل جایز دی چی ستا سامان پکی پروت وی او دغه ځای دمیلمنو لپاره خاص وی کله چی هلته څوک نه وی**

**((لَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ أَن تَدْخُلُوا بُيُوتًا غَيْرَ مَسْكُونَةٍ فِيهَا مَتَاعٌ لَّكُمْ ۚ وَاللَّهُ يَعْلَمُ مَا تُبْدُونَ وَمَا تَكْتُمُونَ ))النور 30**

**((تاسو باندی څه ګناه نشته چی هغه کورونو ته ننوځی چی خالی دی او هغی کی ستاسو سامان پروت وی او الله تعالی پوهه دی په هغه څه چی تاسو یی ښکاره کوی او تاسو یی پټوی))**

**د رشته دارانو او ملګرو کورونو کی د څه شی خوړلو کی تکلف ندی پکار کله چی هغوی دا بد نه ګڼړی**

**دغه شان د رشته دار یا ملګری هغه کور نه خوراک کول چی تاته یی چاپی درکړی وی او خپله کور کی نه وی**

**((لَيْسَ عَلَى الْأَعْمَى حَرَجٌ وَلَا عَلَى الْأَعْرَجِ حَرَجٌ وَلَا عَلَى الْمَرِيضِ حَرَجٌ وَلَا عَلَى أَنفُسِكُمْ أَنْ تَأْكُلُوا مِنْ بُيُوتِكُمْ أَوْ بُيُوتِ آبَائِكُمْ أَوْ بُيُوتِ أُمَّهَاتِكُمْ أَوْ بُيُوتِ إِخْوَانِكُمْ أَوْ بُيُوتِ أَخَوَاتِكُمْ أَوْ بُيُوتِ أَعْمَامِكُمْ أَوْ بُيُوتِ عَمَّاتِكُمْ أَوْ بُيُوتِ أَخْوَالِكُمْ أَوْ بُيُوتِ خَالَاتِكُمْ أَوْ مَا مَلَكْتُمْ مَفَاتِحَهُ أَوْ صَدِيقِكُمْ لَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ أَنْ تَأْكُلُوا جَمِيعاً أَوْ أَشْتَاتًا))**

((نشته په ړوند باندی څه ګناه نه ګوډ باندی او نه په مریض باندی او تاسو باندی چی تاسو د خپلو کورنو څخه خوراک وکړی یا د کورونو د پلرونو ستاسو یا د کورونو د مورګانو یا د کورونو د وروڼو ستاسو یا د کورنو د خویندو یا دکورونو د ترونو یا دکورونو د تروریانو د مور او پلار د طرفه او یا د کورونو د ماماګانو  یا هغه چی تاسو د هغی د چابیانو مالکان وی یا د کور د ملګری ستاسو نشته پټاسو باندی ګناه چی یو ځای خوراک وکړی یا بیل بیل ))

خپلو ماشومانو او خادمانو ته حکم کول چی د خوب په وختونو کی دمور او پلار کمری ته بغیر د اجازت نه نه ننوځی

مخکي د سحر مونځ نه او د قیلولی په وخت او د ماښوستن نه پس

دا ددی وجی نه چی د هغوی سترګی به په غیر مناسب شی باندی ولګی لیکن که هغوی ددی اوقاتو نه علاوه نورو وختونو کی څه شی د غلطی د وجی نه ووینی نو څه حرج نشته ځکه دوی د په کور کی د ګرځیدونکو څخه دی چی منع کول یی نا ممکن دی

((يا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لِيَسْتَأْذِنكُمُ الَّذِينَ مَلَكَتْ أَيْمَانُكُمْ وَالَّذِينَ لَمْ يَبْلُغُوا الْحُلُمَ مِنكُمْ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ مِن قَبْلِ صَلَاةِ الْفَجْرِ وَحِينَ تَضَعُونَ ثِيَابَكُم مِّنَ الظَّهِيرَةِ وَمِن بَعْدِ صَلَاةِ الْعِشَاءِ ثَلَاثُ عَوْرَاتٍ لَّكُمْ لَيْسَ عَلَيْكُمْ وَلَا عَلَيْهِمْ جُنَاحٌ بَعْدَهُنَّ طَوَّافُونَ عَلَيْكُم بَعْضُكُمْ عَلَى بَعْضٍ كَذَلِكَ يُبَيِّنُ اللَّهُ لَكُمُ الْآيَاتِ وَاللَّهُ عَلِيمٌ حَكِيمٌ (58))

((ای د ایمان والاو باید تاسو نه دی اجازت وغواړی هغه کسان چی تاسو یی مالکان یی او هغه ماشومان چی بلوغ ته ندی رسیدلی دری مرتبه مخکی د د سحر د مونځ نه او کله چی تاسو خپلی کپړی ګدی د ماسپښین په وخت او پس د ماښوستن نه دری وختونه دی ستاسو لپاره نشته په تاسو او هغوی باندی ګناه ددی وختونو نه پس دوی پتاسو باندی ګردش کونکی دی بعضی ستاسو په بعضو باندی او دغه شان الله تعالی بیانوی ستاسو لپاره اياتونه او الله تعالی پوهه او حکمتونو والا دی))

## د بل چا کور ته د هغه د اجازت نه بغیر سر ورښکاره کول حرام دی

د ابو هریره رضی الله عنه نه روایت رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایی

**{ من اطلع في بيت قوم بغير إذنهم ففقئوا عينه فلا دية له ولا قصاص }(1)**

(1) رواه أحمد (7998).

((چا چی یو کور ته بغیر د اجازت نه سر ورښکاره که او هغوی دده سترګه ړنده کړه نو نه په هغوی باندی دیت شته او نه قصاص))

## د کور ښخه د هغی ښځی نه وتل یا ویستل چی طلاق رجعی وته ورکړل شوی او د عدت په وخت کی وی سره ددی چی هغی باندی به خرچه کولی شی

**((يا أَيُّهَا النَّبِيُّ إِذا طَلَّقْتُمُ النِّساءَ فَطَلِّقُوهُنَّ لِعِدَّتِهِنَّ وَأَحْصُوا الْعِدَّةَ وَاتَّقُوا اللَّهَ رَبَّكُمْ لا تُخْرِجُوهُنَّ مِنْ بُيُوتِهِنَّ وَلا يَخْرُجْنَ إِلاَّ أَنْ يَأْتِينَ بِفاحِشَةٍ مُبَيِّنَةٍ وَتِلْكَ حُدُودُ اللَّهِ وَمَنْ يَتَعَدَّ حُدُودَ اللَّهِ فَقَدْ ظَلَمَ نَفْسَهُ لا تَدْرِي لَعَلَّ اللَّهَ يُحْدِثُ بَعْدَ ذلِكَ أَمْراً))**

الله تعالی فرمایی ((ای نبی کله چی تاسو ښځو ته طلاق ورکوی نو په عدت کی طلاق ورکوی او عدت حسابوی او دالله نه ویریږی هغوی د کورونو نه مه وباسی او خپله دی هم د کور نه نه وځی مګر که یو زنا ترینه وشی او دا دالله حدونه دی څوک چی د الله د حدودو نه تجاوز کوی نو یقینا هغه په خپل ځان باندی ظلم وکړه او تاته پته نشته کیدای شی الله تعالی ددی نه پس یو نوی کار وکړی))

# د شرعی مصلحت د وجی د ښځی سره په کور کی یا د کور نه باهر خبری بندول

هر چی د هغی په کور کی پریخودل دی نو د هغی دلیل دالله دا قول دی او په بیسترو کی د هغوی نه جدا شی

او هر چی د کور نه باهر د هغوی پریخودل دی نو هغه داسی لکه څنګه چی رسول الله کړی وو چی خپلی بیبیانو سره یی بایکاټ کړی وو او د کور نه باهر یی یوه کمره کی اوسیدل اختیار کړی وو

## په کور کی دی ځانله نه ویده کیږی

دابن عمر رضی الله عنه نه روایت( **أَنّ النّبِيّ صَلّى اللّهُ عَلَيْهِ وَسَلّمَ نَهَى عَنْ الْوَحْدَةِ أَنْ يَبِيتَ الرّجُلُ وَحْدَهُ أَوْ يُسَافِرَ وَحْدَهُ** )(1)

رسول الله صلی الله علیه وسلم د ځانله والی نه منع کړی ده چی یو کس ځانله ویده شی یا ځانله سفر وکړی

او دا منع ددی وجی نه ده چی په ځانله والی کی ددشمن او غلو د حملی خطره وی د غه شان دبیماری هم خطر وی نو دویم ملګری دی شیانو کی له تا سره مدد کولی شی

## د کور په داسې چت باندې دې نه ویده کیږي چې د هغې دیوالونه نه وي دې لپاره چې ښکته راپرینوزي

نبي کریم صلی الله علیه وسلم فرمایي(( **من بات على ظهر بيت ليس له حجار فقد برئت منه الذمة**))(2)

**څوک چې پداسې چت باندې پریوځي چې چاردیوالي یې نه وي نو د هغه نه ذمه اوچته ده**

---

(1) رواه أحمد (0565) (2) رواه أبو دود (1405

ددی حدیث شرح په عون معبود کی ده

هغه دا چی کیدای شی دا په خوب کی په ډډه باندی واوړی او کله چی د چت دیوار نه وی چی دا د غورځولو نه منع کړی نو ښکته به راپریوځی او مړ به شی نو دده مرګ به دده په لاس شی او څوک به دده په مرګ کی ملوث نه وی( نو دا مطلب دی ددی چی د هغه نه به ذمه اوچته شی)

نو د هغه مرګ به د چا په ذمه نه وی او دا معنی ېی هم کیدای شی چی دده سره به دالله حفاظت نه وی ځکه ده هغه ظاهری اسباب اختیار نه کړل کوم چی الله تعالی پری امر کړی دی

## د کور پیشوګان چی د کوم لوخی نه اوبه اوڅکښی یا خوراک وکړی نو د هغوی ددی خوراک یا څښاک په وجه لوخی نه ناولی کیږی

د ابو قتاده رضی الله عنه نه روایت دی(( أَنَّ أَبَا قَتَادَةَ دَخَلَ فَسَكَبْتُ لَهُ وَضُوءًا فَجَاءَتْ هِرَّةٌ فَشَرِبَتْ مِنْهُ فَأَصْغَى لَهَا الْإِنَاءَ حَتَّى شَرِبَتْ قَالَتْ كَبْشَةُ فَرَآنِي أَنْظُرُ إِلَيْهِ فَقَالَ أَتَعْجَبِينَ يَا ابْنَةَ أَخِي فَقُلْتُ نَعَمْ فَقَالَ : إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ : "إِنَّهَا لَيْسَتْ بِنَجَسٍ إِنَّهَا مِنْ الطَّوَّافِينَ عَلَيْكُمْ وَالطَّوَّافَات))(1)

چی د هغه لپاره داودس اوبه کیخودی شوی پدیکی پیشو د هغه نه اوبه اوڅکښلی نو هغه د همدغه اوبو نه اودس وکه خلکو ورته وویل ای ابو قتاده دی کی خو پیشو خوله ووهله هغه وویل ما د رسول الله ﷺ نه اوردیدلی دی چی پیشو د کور والاو څخه ده او هغه په تاسو باندی د ګردش کونکو څخه ده

---

او په یو بل روایت کی راغلی دی چی پیشو ناولی نده بلکی هغه پتاسو باندی د ګردش کونکو څخه ده

---

(1) رواه أحمد في المسند (63622

# په کور کې اجتماع ګانې کول ( یعنی د مشورې لپاره راټولیدل )

13

# د کور د مسایلو باره کی د خبرو اترو لپاره فرصت ورکول

**الله تعالی فرمایی« ... وَأَمْرُهُمْ شُورَى بَيْنَهُمْ ... » سورة الشورى: 38.**
**( ددوی کار ددوی په مینځ کی مشوره باندی کیږی)**

د یو کورنی د کامیابی او خوشګوار ماحول د علاماتو څخه دا همده چی په هغی کی د کورنی مسایلو د حل کولو لپاره یو مناسب وقت مقررېږی او په هغی کی د کورنی افراد کورنی مسایل د بحث لاندی راوړی

او دی کی هیڅ شک نشته چی کوم کس ته چی الله د رعیت مسولیت ورکړی وی هغه اولنی مسوول دی لیکن نورو خلکو ته په کورنی معاملاتو کی د خبری فرصت ورکول خاص طور سره خپلو ماشومانو ته کله چی هغوی لوی شی نو پدی کی د هغوی تربیت وشی چی مسوولیت به څنګه پورته کولی شی او هغوی ددی هم احساس کوی چی زمونږ د ارا څه قیمت شته

او ددی مثالونو څخه دا دی چی د هغه کارونو متعلق خبره اتره کول چی د حج یا عمری متعلق وی یا د چهوټیانو متعلق یا د رشته دارانو سره د خپلولی متعلق یا د واده او ولیمی باره کی خبری اتری او مشوری یا دعقیقی او یا دیو کور نه بل کور ته د تګ په وخت کی د انتظامی امورو د حل کولو لپاره مشوره کول

او دغه شان نور د خیر کارونو باره کی لکه د کلی د غریبانانو عدد معلومول او هغوی کی خوراک تقسیمول او د هغوی نور مالی مدد کول

دغه شان د کورنی خپل مینځی مسایل بحث کول او د هغی د حل لپاره لاره ایستل

او پدی مقام کی یوی مهمی اجتماع ته باید اشاره وکړم هغه دا چی مور او پلار باید په انفرادی طور سره د خپلو بچیانو سره مشوری وکړی ځکه بعضی مشکلات داسی وی چی د هغی حل په اجتماعی طور سره نه کیږی

د مثال په طور پلار دځوی سره ځانله یو مجلس قایم کړی او هغه سره د ځوانی بلوغت وغیره مسایلو باره کی خبری اتری وکړی

او دغه شان مور دلور سره دغه شان انفرادی ملاقات وکړی او هغی سره د هغی پدی عمر کی پیښ مسایل تبصره کړی

او کله چی مور یا پلار خپل ځوی ته داسی ووای چی کله چی زه ستا په عمر کی وم ددی خبری ډیر غټ اثر وی په هغوی باندی

او دداسی خبرو نه کول  په هغوی باندی دا اثر کیږی چی هغوی بیا د بدو او ناکاره ملګرو سره دوستی اختیاروی د کومی نه چی لوی شرونه جوړیږی او په هغی سره معاشره تباه کیږی

# 14 د ماشومانو مخي ته د کورنی جګړو اظهار نه کول

ډیر کم داسی کورونه دي چی هغوی د جګړو نه بغیر زندګی تیروی لیکن صلح کول بهتره عمل دی او حق ته رجوع کول غوره دی لیکن د کور سلامتی ته خطره هغه وخت ده چی اختلافات او جګړی د کور والا ته مخی ته شی نو پدیکی په یو کور کی دوه جماعتونه جوړ شی او د کور بیړه تباه شی سره ددی چی ددی ډیر بد اثرات په ماشومانو باندی پریځوی

او د دهغه کور به څه حال وی چی هغی کی پلار ځوی ته وایی مور سره دی خبری مه کوه او مور ورته وایی پلار سره دی خبری مه کوه او بچی پدی وخت کی په یو تذبذب کی وی نو باید ددی خلافاتو نه ځان وساتل شی او کله چی واقع شی نو باید مونږ یی د هغوی د نظر نه پټ کړو

الله تعالی دی زمونږ په زړونو کی د یو بل سره محبت واچوی

## ۱۵ د هغه چا کور ته نه ننوتل چې بې دینه وي

نبي کریم ﷺ فرمایي

**((ونافخُ الكير: إما أن يَحرقَ ثِيَابَكَ، وإما أن تجد منه ريحا خبيثَة ))(1)**

(( د بد ملګري مثال پشان د سندان والا دی او دبخاری په روایت کی دی او دسندان ستا بدن سیزی یا دله جامی سیزی او ته به د هغی نه ناولی بوی مونده کوی))

او قسم په الله بد ملګری ستا کور په مختلفو فسادونو سره سیزی ددی مفسدانو د وجی په څومره کورونو کی دشمنیانی شروع دی

او ددوی په وجه خاوند د ښځی نه جدا وی او الله تعالی په هغه چا باندی لعنت کړی چی دښځی او خاوند مابین کی جدایی راولی یا هغه د مور پلا ر او بچو مابین کی د جدایی سبب شی

او په کورونو کی د سحر او جادو کیخودل او اکثر په کورونو کی غلا ګانی واقع کیدل او نور فسادونه هم دداسی خلکو کورونو ته د ننیستول نتیجه وی

پس لازمه ده چی دوی ته دداخلیدو اجازت ونشی برابره ده که ګاونډیان ښځی وی یا سړی یا دوستان وی

او بعضی خلک ددی نه شرمیګی چی څوک ددروازی نه رخصت کړی او اجازت ورته ونه کړی سره ددی چی د ه ته پته وی چی هغه مفسد دی

پد سلسله کی د ښځی باندی ددی مسوولیت ډیر غټ دی

---

(1) روايـة أبي داود (9284)

.

**نبی کریم ﷺ یو ه ورځ دری مرتبه وفرمایل کومه ورځ زه حرامه کړم ؟ صحابه وویل د حج ورځ بیا هغه په دی خطبه کی وفرمایل ستاسو په خپلو ښځو باندی دا حق لری چی هغوی هغه کس کور ته راننباسی چی تاسو یی بد ګنړی**

**او هغه چاته اجازت ونه کړی چی ستاسو کور ته راشی او تاسو ورسره نفرت کوی**

**نو ای مسلمانی ښځی کله چی ستا خاوند تا د یوښځی د راننوتو د اجازت نه منع کړی نو ته ضد مه کوه ځکه هغه ته به ددی فساد معلوم شوی وی ځکه یی منعه کوی او باید ته خوشیاره اوسیږی چی دغه ښځه ستا د خاوند او د خپل خاوند مابین کی داسی معاهدی ونه کړی چی ته د خاوند نه داسی مطالبی وکړی چی د هغه وس کی نه وی او تا باندی لازمه ده چی خپل خاوند ته نصیحت وکړی کله چی ته محسوس کړی چی دهغه ملګری ستا خاوند په بدو کارونو کی واقع کول غواړی**

**او ای سړی ته باید کوشش کوی چی خپل کور کی موجود اوسی څومره چی ستا وس وی ځکه دولی الامر په کور کی موجودوالی د کور په تربیت کی معاون ثابتیږی او هغه د کور داحوالو اصلاح په مراقبی سره کوی**

**او بعضی خلک داسی خیال لری چی د کور نه باهر اوسیدل پکار دی او همیشه دکور نه باهر اوسړی مګر که باهر ورته ځای میلاو نشی نو خپل کور ته راځی**

**لیکن دا ډیر غلط سوچ دی لیکن کله چی یو کس دالله دطاعت لپاره دکور نه ووځی نو د هغی لپاره یو خاص وخت وی او یوڅو ورځی وی لیکن که د هغه وتل د ګناهونو په لاره کی او دوخت ضایع کولو کی وی نو باید الله تعالی ته توبه وباسی او ددنیا سره دی تعلق کم کړی دغه شان تجارتونه او بی ځای ملاقتونه دی هم په کثرت سره نه کوی ځکه غټ بدبخت سړی هغه دی چی خپل کوروالا یی پریخی وی او صرف دنیا پس شوی وی**

**او مونږ پدی وخت کی نه غواړو چی د مغربیانو کتابونو نه حوالی نقل کړو پدی باندی چی هغوی زمونږ اسلام ته څومره حیلی او چلونه جوړ کړی دی**

**لیکن یوه فقره چی په اخبار د مشرق اعظم ماسونی کی خپره شوی وه هغه د عبرت لپاره ذکر کوو**

**هغه داده چی هغوی وایی د یو فرد او دهغه د کورنی مابین کی جدایی لپاره تاسو باید د هغوی اخلاقو کی رول ولوبوی او د هغوی اخلاق خراب کړی ځکه د هغوی نفسونه د ی ته مایل دی چی د کور احوال ګډوډ وی او حرام شیانو طرفته مایله وی او د ا خوښه ګنړی چی یو هوټل کی ګپ شپ ولګوی په نسبت ددی چی د کور په کارونو کی مصروفه وی**

# 16 د کور د احوالو په ملاحظه کولو کی دقت او هوشیاری نه کار اغستل

ستا د بچو دوستان څوک دی ؟

ایا ته هغوی پیژنی یا دی ورسره ملاقات کړی

د باهر نه ستا اولاد کور ته دځان سره څه شیان راوړی ؟

ستا لور چیرته ځی او د چا سره ځی ؟

بعضی پلارانو ته دا پته نه وی چی دهغوی د بچیانو په جیبونو کی گنده تصویران او بد فلمونه او نشه یی شیان دی او بعضی ته د ا پته نشته چی دهغه لور د خادم سره بازار ته لاړه شی او خادم تهووایی چی دلته انتظار کوه زاه راځم او د یو شیطان سره لاړه شی او بله لاړه شی چی د خپلی ملگری سره سگریټ او نشه وکړی او گپ شپ ورسره ولگوی

او همدا کسان چی خپل اولاد دغه شان ازاد پریږدی دوی به هیڅکله د قیامت د هولناکیو نه بچ نشی

او دلته بعضی نکتی د باید دیته توجه وشی

۱ باید مراقبه او څارنه په پټه وی

۲ دی لپاره نه وی چی بچی ته ویره ورکړل شی

۳ باید د ماشومانو په خپل پلار باندی اعتمال ختم نشی

۴ باید په نصیحت کی سزا ورکولو کی د ماشوم د عمر خیال وساتل شی او دهغوی د غلطی مطابق سزا ورکړی شی

۵ د هغوی د هر حرکت څارل صحیح ندی

ماته یو کس وویل چی یو سړی دی هغه په خپل کمپیوټر کی د خپلو ماشومانو غلطیانی په تفصیل سره نوټ کړی دی کومه غلطی چی د هغوی نه کیږی هغه راغواړی او ورته وایی چی تا دافلانی فلانی غلطی کړی تر دی چی پخوانی غلطیانی ورته هم وربښکاره کړی

نو دا کس دی باید دتربیت اسلامی اصول زده کړی

او ددی په مقابل کی داسی کسان شته چی هغوی د اولاد په کارونو کی تدخل کول بالکل جایز نه ګڼړی پدی دلیل چی که یو ماشوم او بچی غلطی وکړی نو هغه دسره خپله غلطی تسلیموی نه نو زمونږ د څارنی څه فایده؟

لیکن دا سوچ د غربی فسلفی د شیدو مذموم حریت نتیجه ده پس الله دی تباه کړی دغه شیدی ورکونکی فسلفه او د غه مذموم حریت

او بعضی خلک بالکل د خپل بچی پری کولاووی پدی ګمان چی ماته بد ونه وایی او دا وایی چی زه نه غواړه چی زما زوی زما څخه خفه او ناراضه شی

او بعضی پدی غلط ګمان خپل بچی ازاد پریږدی چی زما پلا ر چی ما سره کوم بد کړی دی زه باید د هغی برعکس کار د خپل زوی سره وکړم

او بعضی لا دا هم وایی چی پریږه خپل لور او ځوی چی د خپلی ځوانی څخه خوندونه واخلی

لیکن دوی ته د ا معلومه نده چی دغه ځوی او لور به د قیامت په ورځ خپل پلار د ګریوان نه نیسی او وایی به ای پلاره ولی دی زه ګناه ته پریخودی یم

## ۱۷د کور په ماشومانو باندی خیال ساتل

او دا په مختلفو طریقو باندی چی د هغی نه بعضی په لاندی ډول دی

۱ هغوی ته په یادو باندی قران او اسلامی قصی ورزده کول

ځومره ښه خبره ده چی پلار خپل بچی پدی مقصد باندی راټول کړی چی هغوی ته د قران څه سورتونه د مختصری ترجمی سره وریاد کړی

او هغوی لپاره پدی باندی انعامات مقرر کړی

او دا مشاهده شوی چی ډیرو ماشومانو سورت کهف حفظا یاد کړی د ی ځکه چی د هغوی پلار هغه هره جمعه تلاوت کوی

دغه شان بچو ته اسلامی عقیده ورزده کول هم پکار دی لکه پشان د دی

چی په حدیث کی راغلی رسول الله معاذ ته فرمایلی وو د الله حفاظت وکړه الله به ستا حفاظت وکړی

او هغه ته اسلامی اداب او اذکار ورزده کول لکه اذکار د خوراک خوب ټوخی کولو او اجازت غوښتلو

دغه شان داسلامی قصو اورول خپلو ماشومانو ته په هغوی باندی مثبت اثر کوی

او ددی قصو نه قصه د نوح علیه السلام او طوفان د ه قصه دابراهیم علیه السلام په باره د بوتانو ماتولو کی او د هغه په اور کی غورځیدل

قصه د موسی علیه السلام چی دفرعون نه یی نجات حاصل کړی وو

او غرقیدل د فرعون او د هغه دلښکرو په سمندر کی قصه د یونس علیه السلام په خیټه د ماهی کی او مختصرا قصه د یوسف علیه السلام او بعضی سیرت د نبی علیه السلام لکه د هغه مبعوث کیدل او هجرت او د بعضی غزوات قصی لکه غزوه بدر خندق وغیره لکه د نبی علیه السلام قصه د یو سړی سره چی خپل اوښ به یی ډیر وهلو او نوری قصی د نیکانو خلکو

او قصه د عمر رضی الله عنه د یوی ښځی او د هغی د وړو بچو سره او قصه د اصحاب الاخدود او قصه د باغ والاو په سورت نون کی قصه د هغه دری کسانو چی غار کی حصار شوی وو او دغه شان نوری خوندوری قصی

چی د بعضی تفصیل او شرح سره هغوی ته بیان شی نو پدی سره هغوی د هغه بیکاره قصو نه بی پرواه کیږی چی هغه د ماشوم عقیده خرابوی او هغه په ویره او خوف کی مبتلا کوی

ماشومان باید د هر شی لپاره د کور نه باهر ونه وځی پدی سره هغوی د کور نه باهر بد اخلاق یادوی بلکه د ګاونډیانو د کورونو نه د بعضی نیکو ماشومانو انتخاب وشی او خپل کور ته هغوی راوبللی شی چی ددوی سره لوبی وکړی

د ماشومانو د لوبو خیال ساتل هغه لوبی چی فایده مندی وی او د هغوی لپاره باید د لوبو لپاره یو کمره خاص شی یا یو ځای چی هغی کی د لوبو سامان ګدی

او دهغو لوبو نه اجتناب وشی چی هغی کی د شریعت مخالفت وی لکه په لوبو کی د ګانی بجانی الات استعمالول وغیره

او بهتره ده چی د ماشومانو لپاره د لوبو سامان متوفر کړی شی او د هغوی لپاره د کمپیوټر بعضی مباح ګیمونه

لیکن پدی سلسله کی ددی خیال ساتل پکار دی چی بعضی کمپیوټری ګیمونه د زناه په تصویرانو باندی مشتمل وی هغی نه اجتناب وشی

تر دی چی ماته یو کس وویل یو داسی کمپیوټری ګیم دی چی هغی کی یو کس ګیم کوی نو یوه جینی به ځانله منتخبه کړی چی تا سره لوبه وکړی نو کله چی تا دا ګیم وګټوو نو هغه جینی به تاته په بی شرم او بی حیا شکل کی راښکار کیږی ددی په بدلی کی چی تا ګیم وګټوو

## د ماشومانو هلکانو او جینکو په بیسترو کی جدا والی راوستل

او پدی ترتیب او فرق باندی دین داره کورنی عمل کوی

او بی دینه خلک ددی اهتمام نه کوی

## د ماشومانو سره مزاح او محبت کول

نبی کریم ﷺ به د ماشومانو سره خوش مزاجی کوله د هغوی په سرونو به یی لاس رابنکه او هغوی ته به یی په محبت کی اواز کوو

په هغو کی چی به کوم ډیر ماشوم وو هغه ته به یی میوه د ټولو نه مخکی ورکوله

او په لاندی ډول دنبی علیه السلام د حسن او حسین سره

د مزاح دوه مثالونه بیانیږی

ابو هریره رضی الله عنه فرمایی

((كان رسول الله ليدلع لسانه للحسن بن علي فيرى الصبي حمرة لسانه فيبهش إليه))

(( نبی علیه السلام به د حسن بن علی لپاره خپله ژبه راویستله نو هغه به دژبی سوروالی ولیده نو خوشحاله به شو)) 1

( (1) رواه أبو الشيخ في أخلاق النبي ﷺ وآدابه (481

يعنی دی کار به هغه لره خوشحاله وو او جذب کوو به یی

يعلى بن مره فرمايی ((" خَرَجْنَا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ . وَدُعِينَا إِلَى طَعَامٍ فَإِذَا حُسَيْنٌ يَلْعَبُ فِي الطَّرِيقِ . فَأَسْرَعَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَمَامَ الْقَوْمِ . ثُمَّ بَسَطَ يَدَيْهِ . فَجَعَلَ يَمُرُّ مَرَّةً هَا هُنَا وَمَرَّةً هَاهُنَا . يُضَاحِكُهُ حَتَّى أَخَذَهُ . فَجَعَلَ إِحْدَى يَدَيْهِ فِي ذَقَنِهِ وَالأُخْرَى فِي رَأْسِهِ . ثُمَّ اعْتَنَقَهُ فَقَبَّلَهُ .))1

((مونږ د نبی علیه السلام سره په یو سفر کی وو او مونږ ته د روتی د عوت شوی وو

پدیکی حسین په لاره کی لوبی کولی نو نبی علیه السلام ورته وروړاندی شو او لاسونه یی ښواره کړه کله یی دیخواه وړل او کله یی اخوه هغه سره مزاح کوو تردی چی راوایغسته او یو لاس باندی یی د هغه څټ ونیو او بل لاس باندی سر او بیا یی ښکل که ))

---

(1) رواه البخـاري في الأدب المفـرد (463)

# 18په کور کی د خوراک او خوب وختونه تنظیمول

د بعضی کورونو حال پشان د هوټلونو دی د هغی اوسیدونکی ډیر کم یو بل سره میلاویږی او ډیر کم یو بل پیژنی

او بعضی ماشومان کله چی یی زړه وغواړی خوراک کوی او کله چی یی زړه وغواړی وده کیږی پدی سره شوگیری کیږی وخت ضایع کیږی او یو خوراک بل پس کول دی

لیکن دا کارونه کول د کورنی علاقات او روابط متاثره کوی او ددی په وجه اوقات ضایع کیږی او دنفسونو کمزوری دی سره زیاتیږی

البته بعضی خلک دا عذر پیش کوی چی ماشومان هلکان دی او که جینکی د مدارسو څخه کور ته په مختلفو اوقات کی راوپس کیږی

دغه شان حال د مزدورانو او هغه کسانو دی چی مختلفی وظیفی لری لیکن دا د ټولو خلکو حال ندی

او د یوی کورنی په یو ځای باندی د خوراک او دکور د مسایلو د مشوری لپاره راټولیدل څومره ښه ښکاری

نو باید د کور مالک لره پکار دی چی د هر فرد د کور ته راوپس کیدو لپاره اوقات مقرر کړی او دغه شان د ماشومانو لپاره دا قانون جوړ کړی چی هغوی د کور نه بغیر د اجازت نه نه وځی

# ۱۹ د کور نه باهر د ښځی کار کول

د اسلام قوانین د یو بل تکمله ده او کله چی الله تعالی زنانه و ته دا حکم وکه((وَقَرْنَ فِي بُيُوتِكُنَّ وَلَا تَبَرَّجْنَ تَبَرُّجَ الْجَاهِلِيَّةِ الْأُولَىٰ )) الاحزاب 33

((چی په خپلو کورونو کی کینی))

نو دهغوی لپاره یی داسی څوک مقرر کړی چی هغوی باندی خرچه کوی لکه پلار او خاوند

او اصل دادی چی ښځه به د کور نه باهر دضرورت نه بغیر کار نه کوی لکه موسی علیه السلام چی د یو نیک سړی دوه لورګانی ولیدی چی ګدی او بیزی یی څرولی نو دهغوی نه یی پوښتنه وکړه

((قَالَ مَا خَطْبُكُمَا ۖ قَالَتَا لَا نَسْقِي حَتَّىٰ يُصْدِرَ الرِّعَاءُ ۖ وَأَبُونَا شَيْخٌ كَبِيرٌ)) (23)

((تاسو څه کوی هغوی وویل مونږ دا ګدی او بیزی تر هغه نه خړوبه کوو چی تر څو پوری دا نور خلک لاړ نشی او زمونږ پلار بوډا سړی دی))

نو هغوی د کور نه د وتلو لپار عذر پیش کړ چی زمونږ پلار بوډا دی او د ډیر عمر د وجی کار نشی کولی

او هغوی دی باندی حریصی وی چی بل څوک مونږ لپاره خادم شی او مونږ د کور نه ونه ووځو

نو خپل پلار ته یی وویل ((قَالَتْ إِحْدَاهُمَا يَا أَبَتِ اسْتَأْجِرْهُ ۖ إِنَّ خَيْرَ مَنِ اسْتَأْجَرْتَ الْقَوِيُّ الْأَمِينُ)) سورة القصص (26)

((دی ( موسی علیه السلام ) لره خادم ونیسه بیشکه دا ډیر قوی او امانت ګر سړی دی))

نو دی ښځی پدی خبری سره خپل حرص ظاهر که چی هغه په کور کی کیناستل دی دی لپاره چی د هغه فتنو څخه ځان محفوظ کړی چی د کور نه باهر دوی ته پیش راځی

لیکن ددوه عالمی جنګونو نه وروسته کله چی د کافرو په سړو کی کم والی وو نو هغوی دی ته محتاج شو چی ښځی د کورونو نه راوباسی او په هغی باندی د جنګ خرابی دفع کړی او ددی سوچ سره د یهودو هغه سوچ هم ملګری شو چی هغوی و ایی مونږ د ښځو ازادی غواړو او دا په دی ارادی سره وایی چی د ښځو دین ته نقصان ورسوی او همدا وجه ده چی وس ښځو د کور نه دباهر کار کولو مطالبی هم شروع کړی

سره ددی چی زمونږ معاشره د هغو ی د معاشری پشان نده زمونږ معاشره کی سړی په ښځو باندی خرچی کوی لیکن د یهودو دا تحریک چی ښځو ته ازادی ورکړی هغه په تیزی دی

دی وجی نه خبره دیته ورسیده چی ښځه د باهر تلو مطالبی شروع کړی تر دی چی دا سندونه کوم چی جامعاتو کی تقسیمیږی ضایع لاړ نشی

که نه وی نو اسلامی معاشری دی شیانو ته ضرورت نلری په اکثره وظایفو کی ځکه ډیر سړی چی هغوی سره ډکریانی شته هغوی ددغی باوجود د وظیفو د موندلو نه قاصر دی او حال دا دی چی د ښځو دکار کولو لپاره میدانونه کولایږی لګیا دی

البته ددی نه انکار نشته چی په بعضی شعبو کی دښځی کار ته ضرورت شته لکه تعلیم ډاکتری کول لیکن دا په شرعی شرایطو باندی

او مونږ چی دا مخکینی مقدماتی طور سره خبری وکړی دا ددی وجی نه چی ډیر ښځی داسی دی چی هغوی دا سوچ لری چی د ښځو د کور نه بهر کار کول یو ضرورت دی

او هغوی د کارونو لپاره په کمه تنخواه باندی او بغیر د ضرورت نه ووځی ځکه هغه دا محسوسوی چی زما کار کول د کور نه باهر ضروری دی اگر که دکار ځای غیر مناسب وی او دی وجی نه ډیر غټی فتنی واقع شوی

په اسلامی قوانینو او علمانی سوچ کی بنیادی فرق دادی چی اسلامی تصور د ښځی د قضیی متعلق دا فکر کوی چی اصل د ښځو لپاره په کور کی کیناستل دی او د حاجت لپاره وتلی شی تاسو ته اجازت دی چی د خپلو حاجتونو لپاره ووځی او علمانیان دا وایی چی اصل د ښځی لپاره په ټولو حالاتو کی د کور نه وتل دی

نو درمیان قول پدی سلسله کی دادی چی بعضی وختونو کی د ښځی د کور نه بهر کار کول واقعی یو حاجت وی لکه کله چی ښځه د خاوند د مرگ نه پس د کور مالکه او مسووله وی یا یی پلار ډیر بوډا وی بهر ته نشی وتلی او دغه شان نو بلکی په بعضی هیوادونو کی د خاوند د کور په خرچو کی د مدد نه کولو په وجه ښځه دی ته ضرورت لری چی څه وظیفه وکړی او دکور خرچه پوره کړی تردی چی په نکاح کی هغوی دا شرط لگوی چی ښځی به وظیفه کوی یا به د کور نه باهر کار کوي

نو خلاصه داده چی د ښځی کار به کله د یو حاجت لپاره وی لکه دالله تعالی طرفته دعوت ورکول یا بل اسلامی هدف لپاره وتل ی

او هر چی د ښځی د کور نه باهر د کار لپاره وتل دی نو د ی باندی بیشماره منفی اثرات مرتب کیږی لکه دهغی نه بعضی په لاندی ډول دی

۱ په ډیرو شرعی منکراتو کی واقع کیدل لکه اختلاط د سړو سره د سړو سره ملاقاتونه کول د هغو سره خلوت کول او پردو سړو ته زینت ښکاره کول تردی چی اخیر خبره زنا ته ورسیږی

۲ خپل خاوند ته پوره حق نه ورکول او د کور خالی پریخودل او بچیانو په حق کی تقصیر کول چی دا زمونږ اصلی موضوع ده

د ښځی په زړه کی د خاوند د تابعداری او دهغه رعب او دبدبه کمیدل

دمثال په طور یوی ښځی سره د هغی د خاوند پشان سندونه وی او د خاوند نه یی تنخواه هم ډیره وی نو ایا ددی ښځی د خاوند سره محبت او د خاوند عزت به

**هغومره وی څنګه چی د عامی ښځی وی ؟یا به داسی وی چی هغه به د خاوند نه ځان غټ او بی پرواه ګنړی نو د کور حالات به دی وجه به د خرابی ښکار شی ؟**

**مګر بعضی ښځی شته چی هغوی باندی الله خپل فضل کړی وی او هغوی ددی باوجود هم د خاوند تابعداری وی**

**او هر چی د خاوند په کور او ښځی باندی خرچه کول دی نو دا هیڅکله نه ختمیږی**

**۵ د بدن ستړی والی او په ذهنی طور سره ستړی کیدنه چی د ښځی د طبیعت سره مناسب نه دی**

**ددی خبرو دپیش کولو نه پس چی د ښځی د کار کولو مفاسد او مصلحتونو باندی مشتملی وی دی نه پس مونږ وایو باید د الله تعالی تقوی اختیاره شی او دی مسالی ته د شریعت په نظر وکتل شی او هغه حالات وپیژندل شی چی هغی کی ښځی له د کور نه وتل جایز یا غیر جایز وی**

**او دنیوی کسبونه د ی مونږ ددی نه منع نه کړی چی حق لاره اختیاره کړو او خپلی ښځی ته نصیحت وکړو په هغه څه چی هغی کی یی فایده وی**

**او سړی له پکار دی چی د ښځی نه انتقامونه نه اخلی او نه د هغی مال په ناحقه باندی وخوری**

# ۲۰ دکور د رازونو حفاظت کول

**او دا بحث په یو څو خبرو مشتملی دی چی د هغی نه**

**د جماع متعلق خبری نه ښورول**

**د کورنی اختلافاتو باره کی چاته خبر نه ورکول او پټ ساتل**

**یو داسی خبره باهر ته نه وړل چی د هغی په وجه د کور یا دیو فرد ضرر وی**

**هر چی اولنی کار دی د هغی د حرامولی دلیل د نبی علیه السلام دا قول دی**

((إن من أشر الناس عند الله منزلة يوم القيامة الرجل يفضي إلى امرأته وتفضي إليه ثم ينشر سرها ")) رواه مسلم **157/4** .

**بیشکه د الله په نزد په ورځ د قیامت باند ی په خلکو کی ډیر سخت عذاب والا هغه کس دی چی د ښځی سره جماع وکړی او ښځه د هغه سره بیا د هغی راز خلکو ته بیانوی**

**او د یفضی معنی دا ده چی یو هغی سره جماع او مباشرت وکړی لکه داللہ پدی قول کی چی تاسو د یو بل سره کوروالی کړی وی**

**او ددی د تحریم ددلایلو څخه حدیث د اسما بنت یزید چی هغه د نبی علیه السلام خواته وه او ښځی او سړی د هغه خواته ناست ووی**

**نو نبی علیه السلام وفرمایل لکه چی پتاسو کی یو کس د ښځی سره جماع وکړی هغه خلکو ته وایی او ښځه هم خلکو ته دی باره کی وایی چی خاوند ورسره څه کړی وی نو پدیکی ټول چپ شول ما وویل بیشکه ای رسول الله دوی ښځی اوسړی دا کار کوی**

---

(1) رواه مسلم **157/4** .

هغه وفرمایل دا کار مه کوی ددی مثال خو د یو شیطان دی چی د شیطانی ښځی سره په لار کی جماع کوی او خلک ورته ګوری

او په روایت د ابو داود کی دا حدیث په نورو الفاظو سره د ابو هریره رضی الله عنه نه روایت دی چی رسول الله ﷺ چی تاسو کی یو تن خپلی ښځی ته راتګ وکړی او ځان پسی دروازه بنده کړی په ځان باندی پرده راوچوی او د الله په پردی سره ځان پټ کړی بیا خلکو سره کینی او وایی چی ما دا دا کار وکه

نو سړی چپ شول بیا ښځو ته متوجه شو او ویی فرمایی ایا په تاسو کی څوک داسی کار کوی نو هغوی هم چپ شوی پدی کی یوه جینی راپاڅیده او رسول الله ته ورنیژدی شوه تر دی چی اواز ورله واوری ویی ویل بیشکه سړی او ښځی دواړه دا کار کوی نو رسول الله ﷺ وفرمایل ددی مثال د یو شیطان دی چی په کوڅه کی د شیطانی سره جماع کوی او خلک ورته ګوري

او هر چی دویم کار دی هغه دا چی د کورنی اختلافات باهر ته ایستل نو پدی سره د کور مشکلات نور هم زیاتیږی او باهر خلکو د ښځی او خاوند په کار کی مداخلت دی معاملی لره نوره هم سختوی ددی لپاره بهترین حل دادی چی د ښځی او خاوند د کورنی له طرفه یو یو کس مقرر شی او دی ته هم حاجت هله راځی چی په کور کی دمسالی حل راونه وځی او مشکل په صلح سره حل نشی نو بیا به مونږ هغه څه کوو چی الله راته امر کړی دی

پس تاسو ولیګی یو فیصله کونکی د خاوند دکور له طرفه او یو فیصله کونکی د ښځی له طرفه که چیرته دوی دواړه صلح کول غواړی نو الله به ددوی په کار کی توفیق واچوی

او هر چی دویم کار دی هغه دا چی د کور یا دکور یو فرد ته ضرر ورکول په نشر کولو د هغه د شخصیاتو نو دا هم جایز ند ی ځکه دا د نبی علیه السلم پدی قول کی داخلیږ ی نه ځان ته ضرر ورکوی او مه بل چاته

او ددی د مثالونو څخه د الله تعالی ددی قول تفسیر دی

**بیشکه الله تعالی تعالی بیان کړی دی د کافرانو لپاره مثالا ښځه د نوح او ښځه د لوط دا دواړه زمونږ د یو دوه نیکو بندګانو (نوح او لوط) په نکاح کی وی نو هغوی سره یی خیانت وکه**

**ابن عباس رضی الله عنهما ددی ایت په تفسیر کی فرمایی**

**د خیانت مطلب دا نه دی چی هغوی زنا وکړه بلکی د نوح د ښځی خیانت داوو چی هغی به خلکو ته د نوح باره کی ویله دا لیونی د ی**

**او د لوط د ښځی خیانت داوو چی هغی به خلکو ته خبر ورکوو چی زمونږ کور ته میلمانه راغلی دی**

**او عوفی د ابن عباس رضی الله عنهما نه ددی ایت تفسیر داسی بیانو ی**

**د هغی دواړو خیانت داوو چی هغوی د نوح او لوط په دین باندی نه وو**

**او دنوح ښځی به د هغه رازونه افشا کول چی چا به د هغه سره ایمان راوړه نو حاکمانو ته به خبر ورکوو چی فلانی ایمان راوړه**

**او د لوط ښځی به چی کله دهغه کور ته میلمانه راغله نو هغه خلکو ته به یی خبر ورکوو چی بد کاری به یی کوله**

## ۲۱ په کور کی د شفقت او نرمی اخلاق ښوروول

عایشه رضی الله عنها نه روایت د ی رسول الله ﷺ فرمایی ((إن الله إذا أحب أهل بيت أدخل عليهم الرفق "))(1) کله چی الله تعالی په یو کورنی باندی د خیر اراده وکړی نو هغوی ته د شفقت کولو توفیق ورکړی

او یو بل روایت کی راځی کله چی الله تعالی د یو کورنی سره محبت وکړی نو هغوی ته دشفقت کولو توفیق ورکړی

یعنی بعضی به په بعضو نورو باندی شفقت کول شروع کړی او دا د یو کور دسعادت او کامیابی اسبابو څخه یو سبب دی

پس د ښځی او خاوند او اولادو مابین کی شفقت کول ډیر فایده مند دی

او ددی داسی نتیجی راوځی چی هغه نتایج په سختی او تشدد سره نه حاصلیږی

لکه نبی علیه السلام فرمایی بیشکه الله تعالی شفقت والا دی او شفقت سره مینه کوی او په شفقت باندی هغه څه ورکوی چی په سختی باندی یی نه ورکوی او په بل شی یی نه ورکوی

---

(1) رواه ابن أبي الدنيا وغيره وهو في صحيح الجامع رقم 1704

# ۲۲ د کور خلکو سره د کور په کارونو کی مدد کول

**اکثر خلک د کور د کار سره نفرت لری او بعضی دا فکر کوی چی د کور په کارونو کی مداخلت کول د هغوی قدر او مرتبه کموی**

**هر چی رسول الله ﷺ وو هغه به کپړه ګنډله چپړی به یی سمولی او د عامو سړو پشان کار به یی کوو**

**دا خبره عایشی رضی الله عنها کړی ده کله چی هغی نه تپوس وشو چی نبی علیه السلام په کور کی څه کارونه کوی**

**او یو روایت کی راځی هغی وویل نبی علیه السلا م یو بشر وو کپړی به یی وینځلی بیزه به یی لشله او د ځان خدمت به یی کوو**

**او د عایشی رضی الله عنها نه تپوس وشو نبی علیه السلام باره کی هغی وفرمایل د کور کار کی به مشغول وو چی د مونځ وخت به شو نو مونځ ته به ووته**

**که نن ورځ مونږ دا کار وکړو نو مونږ به لاندینی مصلحتونه حاصل کړو**

**۱ د رسو الله تابعداری**

**۲ د کور خلکو سره دکور په کارونو کی مدد کول**

**۴ په نفس کی تواضع راتلل او د تکبر نه بچ کیدل**

**او بعضی خلک د ښځی نه روټی غواړی پداسی حال کی ماشوم ورته ژاړی نو نه دا ماشوم راوچتوی او نه صبر کوی نو باید دا احادیث دی دده لپاره عبرت وی**

## ۲۳ د کور خلکو سره مزاح او خوش مزاجی کول

**د ښځی او بچو سره خوش مزاجی کول دهغه اسبابو څخه دی چی په هغی سره کور کی محبت او الفت پیدا کیږی**

**او دی وجی نبی علیه السلام جابر رضی الله عنه ته نصیحت کړی وو ((فهلا بكراً تُلاعبها وتُلاعبك وتضاحكها وتضاحكك " 1وقال صلى الله عليه وسلم : " كل شيء ليس فيه ذكر الله فهو لهو ولعب إلا أربع . ملاعبة الرجل امرأته .. " ))2**

**چی د ځوانی جینی سره نکاح وکړی او هغه ته یی پدی قول سره ترغیب ورکړی وو چی تا ولی د ځوانی سره نکاح نه کول تا به ورسره لوبی کولی او هغی به تاسره او یو بل سره به مو خندا او خوش مزاجی کولی**

**او نبی کریم ﷺ فرمایلی دی هر هغه شی چی د الله ذکر پکی نه وی نو هغه به لهو او لوبی وی مګر د سړی ښځی سره لوبی کول**

**او عایشه رضی الله عنها فرمایی ما او نبی علیه اسلام به د یو لوخی نه غسل د جنابت کوو چی زمونږ مابین کی به پروت وو چی هغه به لاس راوړاندی کړو نو ما به ورته وویل ما له اوبه پریږده ماله اوبه پریږده**

**هر چی د هغه د ماشومانو سره د خوش مزاجی واقعات دی نو هغه انتهایی ډیر دی هغه به ډیر کرته د حسن او حسین سره مزاح کوو لکه دی باره کی خبره تیره شوه**

**او همدا وجه وه چی ماشومان به د هغه په راتګ باندی ډیر خوشحالیدل**

---

(1) البخاري مع الفتح **9/121** (**2**)رواه النسائي في عشرة النساء ص **87**

او کله چی به هغه راغلی نو د استقبال لپاره بی یی منډی وهلی

لکه یو صحیح حدیث کی راځی کله به چی رسول الله ﷺ د سفر نه راغلی نو ماشومان به استقبال ته ورتلل

او هغوی به یی غیږ کی راغستل لکه عبدالله بن جعفر رضی الله عنه فرمایی کله چی به رسول الله د سفر نه راغلو نو ماشومانو به د هغه استقبال کوو یو ځل زه چا د هغه مخی ته وروړم نو هغه زه په غیږ کی راونیول او پدیکی د فاطمه رضی الله عنها یو ځوی هم راوړلی شو نو هغه یی په سورلی باندی ځان سره شاته کینوو او مونږ مدینی ته په سورلی باندی دری کسان داخل شو

نو ته ددی احوالو او هغه احوالو مقارنه وکړه چی په بعضی کورنو کی نن صبا دی نه مزاح نه نرمی او نه شفقت او ځوک چی د ا ګمان کوی چی دما شوم ښکلول د پلار په هیبت او رعب کی کمی پیدا کوی هغه دی  باید دا حدیث ولولی

ابو هریره رضی الله عنه فرمایی یو ورځ رسول الله ﷺ حسن ښکل که پدی موقع باندی اقرع بن حابس ناست وو هغه وویل زما لس بچیان دی تر وسه پوری می یو هم ندی ښکل کړی رسول الله ﷺ وفرماییل ځوک چی د الله په مخلوق باندی رحم نه کوی په هغه باندی الله رحم نه کوی

# 24 په کور کی د بدو اخلاقو سره مقاومت کول

د کور یو کس هم د بدو اخلاقو څخه بچ ندی لکه دروغ ویل غیبت چغل خوری او دغه شان نور نو باید ددی اخلاقو مقاومت وکړی شی

او بعضی خلک خو دا نظر لری چی بدنی سزا ورکول پداسی حالت کی واحد سبب دی

په لاندی ډول دی باره کی یو صحیح حدیث دی چی تربیت ترینه حاصلولی شی

عایشه رضی الله عنها فرمایی نبی علیه السلام چی به د کور د یو تن نه دروغ واوریدل نو مخ به یی ترینه اړولی وو تر دی چی توبه به یی وکړه

دی حدیث نه دا هم معلومیږی چی پداسی حالت کی د مخ اړولو او خبرو پریخودل ډیر موثر علاج دی او دبدی سزا او وهلو نه هم ډیر اثر لری باید د کور خاوند دی پری سوچ وکړی

## ٢٥ پداسی ځای کی لښته راځوړندول چی د کور خلک هغه وینی

**د سزا ورکولو دهمکی د تادیب له اهمو اسبابو څخه یو سبب دی دی وجی نه حدیث کی د لښتی یا امسا ځوړندولو حکم راغلی دی**

**په حدیث کی راځی رسول الله ﷺ فرمایی( علقوا السوط حیث یراه أهل البیت )**

**په کور کی هغه ځای کی لښته راځوړندوی چی د کور خلک یی وینی**

**او په کور کی د سزا الات راځوړندولو په وجه بداخلاقه خلک یریږی او د بدو کارونو څخه اجتناب کوی ځکه د وهلو نه یریږی**

**نو دا دهغوی دپاره یو ادب او دښو اخلاقو په اختیارولو باندی باعث دی**

**ابن الانباری فرمایی: پدی سره د نبی علیه السلام مراد وهل ندی ځکه زمونږ شریعت په وهلو باندی چاته حکم نه کوی بلکی دهغه مطلب دادی چی دادب لښته د هغوی نه مه اوچتوه**

**او وهل اصل مقصد ندی دی ته خو هغه وخت ضرورت راځی چی د ادب ورکولو نور وسایل ختم شی یا وهل ددی لپاره وی چی خلک دالله حکمونه ومنی**

**لکه الله تعالی فرمایی واللاتي تخافون نشوزهن فعظوهن واهجرهن في المضاجع**

**واضربوهن " النساء الآیة 34**

**او هغه زنانه چی تاسو د هغوی د مخالفت نه ویریږی نو هغو ی ته نصیحت وکړی او په بیسترو کی د هغوی نه بیل شی او هغوی ووهی کله چی هغوی ستاستو تابع شی نو بیا ورته څه مه وایی دا په ترتیب سره د ادابو بیان دی**

---

(1) أخرجه أبو نعیم في الحلیة 33/7

**او حدیث کی راځی " مروا أولادكم بالصلاة وهم أبناء سبع سنين . واضربوهم عليها وهم أبناء عشر "1**

**چی خپلو بچیانو ته د مونځ حکم وکړی کله چی د ۷ کاله شی او کله چی د ۱۰ کاله شی نو بیا یی مونځ باندی وهلی هم شی**

**او په بیسترو کی د هغوی مابین کی جدایی راولی**

**اوهر چی بغیر د ضرورت نه د چا وهل دی نو دینه شریعت منع کوی او رسول الله ﷺ یوی ښځی ته نصحیت کړی وو چی هغه سړی سره نکاح ونه کړی چی هغه ډیر وهلو والا وی او د خپل ولی نه لښته نه کوځوی**

**او هر هغه کس چی وهل بالکل جایز نه ګڼړی نو هغه د کافرو د نظریاتو تقلید کوی او دده رایه د قران او حدیث خلاف ده**

---

(1) سنن أبي داود **3/1**

## ۲۶ نه ۳۶ پوری

۲۶ د ښځی دخاوند په غیر موجودګی کی د هغی رشته دارانو محارمو سړو ته کور ته د ننوتو اجازت نه مه ورکوی

۲۷ په کورنی ملاقاتونو کی زنانه د سړو څخه بیلی کینول

۲۸ د ډریورانو او د کور د خادمانو له خطری نه ځان هوشیار ساتل

۲۹ هیجړا ګان له کورونو څخه وباسی

۳۰ د کمپیوټر د شیشی او د ټی وی نه په ویره شه

۳۱ د موبایل د شره نه خبر شه

۳۲ د کور نه هر هغه شی وباسه چی د کفارو علامات پری وی

۳۳ دکور نه دروح والا شیانو تصویران لری کړه

۳۴ په خپلو کورنو کی د سیګریټ وغیره د نشی نه منع وکړه

۳۵ د سپو ساتنی نه ځان وساته

۳۶ د کورونو دباهر او دننه نه ډولی کولو نه ځان وساته

# ۳۷ د کور جوړولو لپاره بهترین ځای کتل

مسلمان لره پکار دی چی د کور اختیارولو او جوړولو په وخت کی د هغه شیانو خیال وساتی چی غیر مسلم یی نه ساتی

نو د ځای په اعتبار سره باید کور د مسجد سره نژدی وی او ددی ډیر فایدی دی اذان اوریدلی شی مونځ ته حاضر او په جماعت سره مونځ کول اسانیږی

دغه شان زنانه د تلاوت اوریدو څخه استفاده کوی ما شومان د قران د حفظ حلقو کی حاضریږی

کور باید داسی ځای کی نه وی چی هلته فاسق فاجر خلک اوسیږی یا داسی معاشره نه وی چی کافران پکی اوسیږی

کور باید با پرده وی او د هغی ټول جوانبو باندی پرده چاپیره وی

او د تصمیم د جهته باید د پردو میلمونو د راتلو په وخت کی دپردو اچولو څخه کار واغستل شی کله چی کور کی داسی ځای نه وی چی د ښځو او سړو ناسته پکی وشی

کړکیو ته پردی اچول چی د بهر نه دننه پکی څوک نه ښکاری خصوصا دشپی کله چی د خوب وخت وی

# 38 د کور اختیارولو نه مخکې د ګاونډی انتخاب

دا مساله ددیر اهمیت حامله ده د ی  وجې نه مونږ دی کې تفصیل کوو

زمونږ په دی زمانه کې د ګاونډی  په بل باندی ډیر غټ اثرات دی ځکه خلک د یو بل سره نژدی اوسیږی او کوڅو او اجتماعاتو کې راجمع کیږی

او رسول الله د سعادت د اسبابو نه یو داهم ذکرکړی دی چې ګاونډی نیک وی او د بدبختی ددځلور اسبابو څخه یې یو بد ګاونډی ذکر کړی دی

او ددی اخیری د خطر د وجې نه به یې په دعا کې دده د شر نه دعا غوښتله

ای الله زه ستا نه د بد ګاونډی پناه غواړم کوم چې زما د ددایمی او مستقل کور خواته اوسیږی او هر چې د صحرا ګاونډی دی هغه دیو ځای نه بل ځای ته تلی شی

او مسلمانانو ته یې هم حکم کړی چې ددی نه پناه وغواړی

او د مقام د  تنګوالی د وجې نه زه د بد ګاونډی بد اثرات په ښځې خاوند او ماشومانو باندی نشم ذکر کولی

لیکن که دا مذکوره احادیث په واقع باند ی تطبیق کړی شی نو دی کې ډیر غټ عبرت دی

اوددی بهترین حل هغه دی چې بعضی نیکان خلک یې کوی هغه دا چې هغوی په خپل ګاونډ کې د نیکانو خلکو لپاره کورونه په خپله خرچه باندی نیسی ځکه چې نیک ګاونډی باندی پیسی خرچ کول څه غټه خبره ندی

# ۳۹ په کور کی د لازمی شیانو راوړلو اهتمام کول او دراحت وسایل متوفرول

پدی زمانه کی د الله تعالی په مونږ باندی دا انعام دی  چی داسی شیان یی راته متوفر کړی چی په هغی سره زمونږ زندګی اسانیږی

لکه ای سی پریچ د جامو وینځلو مشین وغیره نو باید د کور والا دا شیان په هغه اندازه کی راوړی چی څومر ه د هغه په استطاعت کی وی

او باید د شیانو په اغستلو کی دا خیال وشی چی ښه شیان واغستل شی او د کمزوی شیانو نه اجتناب وشی

او په کور باندی داهتماماتو نه دادی چی کور کی څه شی خراب شی هغه باید جوړ کړی شی

بعضی خلک ددی پرواه نه کوی او د هغوی بیبیانی دا شکایت کوی چی کور کی حشرات مچان وغیره ډیر دی بد بوی دی او د کور بعضی شیان مات شوی دي

نو پدی کی هیڅ شک نشته چی ددی په وجه د کور سعادت ختمیږی ا و کور کی د صحت متعلق مشکلات زیاتیږی نو عاقل هغه کس دی چی ددی علاج وکړی

# ۴۰ د کور د خلکو د صحت خیال ساتل او د روغتیا وسایل مهیا کول

نبی علیه السلام عادت داوو چی کله به د هغه کور کی څوک بیمار شو نو په معوذاتو سره به یی دموو

او کله چی به چا باندی تبه راغله نو یو قسم خوروا باندی به یی حکم وکه چی هغه پخه کړی شی بیا به یی هغه مریض ته ورکړه

او فرمایل به یی دی سره د غمجن زړه مضبوطیږی او دبیمار د زړه درد ختموی لکه څنګه چی یو تنه پټاسو کی د خپل مخ نه په اوبو سره خیری ختموی

او د ماشومانو د حفاظت اوسلامتی خیال ساتلو باره کی جابر رضی الله عنه فرمایی

نبی علیه السلام فرمایی کله چی شپه راشی نو خپل واړه باهر ته مه اوباسی ځکه دی وخت کی شیطانان ښوریږی نو کلی په ماښوستن باندی یو ګهیټه تیره شی بیا یی پریږدی او خپله دروازه بنده کړه د الله نوم یاد که او ډیوی مړی کړه د الله نوم یاده که او لوخی باندی سر کیږده

او په روایت د مسلم کی د ی چی لوخی باندی سر کیږدی او د اوبو مشکیزی له خوله وتړی دروازی بندی کړی ډیوی مړی کړی

ځکه شیطان لوخی نشی کولاولی دروازه نشی او دلوخی نه سر نشی لری کولی

او کله چی ستاسو سره هیڅ نه وی مګر یو لرګی د عود نو هغه دی په لوخخی باندی کیږدی ځکه مږه د کور فاسدول او ورانول غواړی

او نبي علیه السلام فرمایي: کله چي تاسو اوده کیږئ نو اور بل مه پریږدئ